# کندهار

مجله

اطلاعات و کلتور

میاشتنۍ خپرونه

د ۱۳۵۱ لمریز کال
د تلې او لړم میاشت
اوومه او اتمه ګڼه

پر له پسې ګڼه ۱۴۵، ۱۴۶
د تاسیس کال ۱۳۳۹

8-7





د کندهار یو عصری واټ چې په احمد شاهی واټ مسمی دی د مرحوم عبدالغنی خان نایب الحکومه
په دوره کې بنا سوی او د هغه د تللو سره سم دغه واټ د ودانیو د بشپړیدو کار نیمګړی پاته سوی دی

# د ګودګان د ناوې د جوړولو چارې د ډنډ په سیمه کې شروع شوې

کندهار د لیندۍ ۲۹:

د ګودګان د ناوې د جوړولو چارې تیره هفته د کرنې او اوبو لګولو وزیر ښاغلي عبدالحکیم د ډنډ د ولسوالۍ په سیمه کښې شروع کړې.

په دغه وخت کښې د کندهار والي ښاغلي سلطان عزیز زکریا، سناتور د عبدالقدوس بارکزي د ډنډ ولسوال ښاغلي عبدالرحمن عزیزي او د کندهار مرکزي دایرو ځینې آمران حاضر وو.

د کرنې او اوبو لګولو ښاغلي وزیر د دغې پروژې د شروع کولو کار تر ساحې لاندې د مځکو د اوبو کولو د پاره یو ګټور اقدام وګاڼه

او د کندهار ښاغلي والي هم د دغه د ارزښت په هکله یادونه وکړه.

د کندهار د محلي انکشاف د مدیریت مهندس وویل:

د ګودګان ناوه د میان جوی د سیمې څخه او به

د ګودګان د کلي کروندو ته رسوي، ۶۰ متره

اوږدوالی او یونیم متر پسوړوالی او بر ۷ متره په

کانکریټي توګه د ۷۰۰ زرو افغانیو په لګښت

د غذمو په مقابل کښې د کادتر پروګرام

لاندې جوړېږي او د ترنک د سطحې څخه

لس متره لوړه دی.

د کرنې او اوبو لګولو ښاغلي وزیر د دغه وزارت مامورینو ته هدایت وکړ چې د دا کوډک

چارده او چېلانې د کلیو د پاره د ډیورپه توګه

کرلو پر سل ته غنم ورکړي.



د کرنې او اوبو لګولو وزیر ښاغلي عبدالحکیم د ګودګان د ناوې د جوړولو کار شروع کوي

---

# د کندهار د ترافیک مدیریت د ودانۍ د بنسټ

## ډبره والي ښاغلي زکریا کښېښوول

کندهار د لیندۍ ۲۶:

د کندهار د ولایت د امنیه قوماندانۍ د ترافیکو د مدیریت د دایرو د ودانۍ د بنسټ ډبره پرون سهار د کندهار والي ښاغلي سلطان عزیز زکریا له خوا د کندهار محبس ته څېرمه کښېښول شوه.

په دغه وخت کښې مستوفي ښاغلي عبدالصمد منصوري، د امنیې قوماندان ډګروال عبدالغني د کندها د مرکزي دایرو ځینې رئیسان، د ترافیکو مدیر او مامورین حاضر وو.

د دو ستړ تر هغه چې

د قرآن مجید څو مبارک آیتو

وویل شوه والي سلطان

عزیز زکریا د معظم همایو

اعلیحضرت د عمر د اوږدوالي

، د لوی افغانستان ترقی

او نیکمرغی د چارو

د هوساینې په دغه د ترافیکو

مدیریت د دوداني د بنسټ ډبره



د ۱۳۵۱ کال د تلې میاشت

# زموږ د وی تاریخي ورځې

**بختور میلاد:**

موږ د نوو دوني یو او په ځیر ځینې ستري او تاریخي
رځې لروچې په هغو کښې یوه هم زموږ د ستر پاچا
زیږېدنې بختوره ورځ ده او هر کال د هغه یادونه
کوو او په خاص ډول ئې لمانځو.

نه پنځوس کاله د مخه د تلې په ۲۲ نیټه زموږ ګران
ودېمو کرات ګوډلواك همایوني معظم اعلیحضرت
زیږېدلی او موږ د غه ستره او تاریخي ورځ سږ کال
لودو کلو په شان بیا په خاص مراسمو سره تجلیل او و.

موږ افغانان د خپل ستر پاچا سره خاصه مینه او
نه شلېدونکې علاقه لرو په تېره بیا چې د ګران ګوډلواك
کېنو په ځیر یو مترقي، دینداره، عادل او مهربانه ملي
ټابه وي او د شاهانه ذات په لوړه اراده زموږ
یواد د ژوند په ګوډلو برخو کښې پرمخ درومي او موږ
وس د مشروطه شاهي رژیم په سیوري کښې د دېمو
کراسي ټینګو لو دلارې د ملي حکومت خاوندان یو.

زموږ هېواد د نیکه مرغه اوس د مادي او معنوي
انکشاف او پرمختګ پرخوا چټک ګامونه اخلي او
موږ د خلکو ژوند ورځ په ورځ سمېږي او له د غه
کبله موږ ګوډلو ته دا ډاډ حاصل شوی دی چې هېواد مو
د خپل ستر پاچا د ښې لارښوونې د لارې د مره ژر بلوه
پرمخ درومي او زموږ ځغه هم خوښتنه کوی چې په د غه
ملي پرمختګ او مترقي چادو کښې برخه واخلو.

د خپل مدبر پاچا او دېمو کرات ګوډلواك د نیکه
مرغه میلاد له کبله د همایوني اعلیحضرت حضور او
افغان ملت ته مبارکي ورکوو او د خپل محبوب قاید تر
ستر قیادت لاندې د افغانستان زیاته لوړه تیا غواړو.

## د نجات ورځ:

پرموږ باندې د شوورځو، نیکه مرغه شپو او
خوشحالوونکو پېښو په څنګ کښې لوئي بدبختۍ او
مصیبتونه هم راغلي دي چې یو له هغو څخه د هېواد لوی
المو دوه او کورني شخړې وې چې څلور کلونه کاله
د مخه د ځینو ناپوه او مرتجعو عناصرو له خوا منځ ته
راغلي او موږ ته ئې زیات ځاني، مالي او معنوي زیانونه
ورسول او که هغه وران حالت د منځه نه وای تللی او موږ له
هغو څخه نجات نه وای موندلی حتی زموږ بقا او خپلواکي
ئې لا تهدید وله.

په همدغه سخت او خطرناکه موقع کښې د هېواد یو
نابغه او نامتو شخصیت اعلیحضرت شهید سعید محمد
نادرشاه غازي د خپلو وطندوستو د ونو او نور و فدا کارو
افغانانو په مرسته موږ ته د هغه خطر څخه نجات راکی
او زموږ په هېواد کښې ئې امنیت ټینګ او بیا ودوسته
د شهید اعلیحضرت له خوا د ترقي او نوي ژوند پاڅه
اساسونه کښېښودل شول خو عمر زموږ د غه ستر او نابغه
مشر ته مهلت ورنه کی چې خپلې ټولې اصلاحي او ارتقائي
نقشې عملي کړي او ژر په شهادت ورسیدخو دا دی هغه
پلانونه د هغه ستر ناجي د خلف الصدق ګران ګوډلواك
له خوا د عمل جامه وا غوستل او هغه ستر اساسات
تطبیقیږي.

د هېواد د ناجي ستر روح ته دعا کوو او د خپل محبوب
پاچا د عمر اوږد والي او د هېواد زیاته لوړه تیا غواړو.

«غلام محی الدین ایوبی»


## د کندهار مجله

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتي مؤسسه
د مسؤل مدیر وکیل: غلام محی الدین (ایوبی)

## لیکونکې پلاوی

عبدالقدوس (نجیب)
احمد (راشد)
عبدالمنان (امین)

میرمن ملاله (اڅکزۍ)
طباعتي همکار محلمي (بارك)
اداره: د شهیدانو واټ
د تیلفون نمبر ۲۸۸۴

د ایوبزي په قلم:

# د افغاني سرې میاشتې تقویه زموږ دیني فریضه او ملي وجیبه ده

که څه هم زموږ هیواد یو باعاطفه ملک دی کال په هر موسم او وخت کښې خیر په چارې سرته رسوي او د مصیبت ځپلو، خوار، ناتوان او بیوزلو ژوند ته په مالي مرسته چاودي او د هغو غمونو، تکلیفونو د کمولو خیال لري او درماندو محتاجانو ته هیري او پوهېږي چې نېکي خود ټولې د میاشتې په روستیو پوه شو کښې چې د افغانی سرې میاشتې د مخصوصې هغې ورځې دي په دغه هکله زیات کوشش کوي او د دغې عام المنفعه او خیریه مؤسسې د ماتې دې پښتو دپیا وړې کولو دلارې خپله دینه فریضه او ملي وجیبه پر ځای کوي .

هر انساني افراد د مصیبتونو او ډولونو، سیلاونو زلزلو، سختو اورونو، بادونو او داسې نورو طبیعي او غیر طبیعي ناسعلو پېښو او واقعاتو څخه څوک هم نشي څخه په امن نه دی او دغه ناوړه حالات د بشري ټولنې ته څرګند او هغوی د سختو مشکلاتو سره مخامخ کوي او پرتو د هغو کسانو باندې چې د راحت، آرامي او خوشحالۍ ژوند لري دالازمه ده چې په دغسې سخت مصیبت کښې د مصیبت ځپلو او بد بختانو لاس ونیسي او د هغوی تکلیفونه ورلیرې کړي .

پر انسان یا زیات کسان نه شي کولای چې د بدبختۍ او پرېشانۍ پر وخت په مؤثر ډول د مصیبت ځپلو په دردونو وخو ندل شي او یا دې د هغو دردونو او غمونو ته ورکم کړای شي او د دغه ستر کار او مهم مقصد د پاره د افغاني سرې میاشتې، سره صلیب، سره هلال، شیر خورشید سرخ او داسې نورې خیریه مؤسسې منځ ته راغلې دي چې د مصیبت ځپلو سره پر موقع او ژر تر ژره پر مټ ترې او ګټوره مرسته او خیریه مرسته کوي او دا هم او درماندو انسانانو لاس نیسي .

که څه هم د دغې خیریه مؤسسې بانې باعاطفه سویسي سوداګر او بشردوست انسان و چې د هغه د نیکو نظریاتو او بشري احساساتو په پیروۍ د غه عالي ټولنه منځ ته راغله او بین المللي حیثیت او شکل یې غوره کړ او اوس دنیې په ټولو هیوادونو کښې دا د اخیر ټولنې سته او په ځینو ځایونو کښې یې د ټولو لېږنې ملیونونو ملیونو ته نادینه او ښځې شامل شوي دي او ټول خیر کارونه سرته د رسوي خو د خیر په چارو اسلام ډېر ارزښت ورکړی دی او دا اسلام مقدس دین اپښه او زموږ خلکو ته د اسلامی نیکو ارشاداتو او اجتماعی هدایاتو په پیروی د خیر او نیکۍ کارونه سرته رسوي او خپلو اوږو خلکو او ورو ته ی مصیبت ځپلو ته اسلامي او قرآني ارشاداتو له مخې لاس ورکوي او په دې ډول خپله دیني او ملي فریضه پر ځای کوي او خالی ځای ډکوي .

افغاني سره میاشت د خیر او ګټې د سولو د مؤسسه او په هیواد کښې د خیریه مؤسسې او عام المنفعه چارو اساس لومړی ځل په کابل کښې د لومړي ځل الا یتا په پرانستلو سره د اعلیحضرت شهید سعید محمد نادرشاه غازي له خوا کښېښودل شو او د افغاني سرې میاشتې مؤسسه د سرې میاشتې د حامی ګران لوړ لوړ له خوا ۱۳۳۲ کال کښې منځ ته راغله او سرپرستي یې د مؤسسې عالي رئیس والاحضرت شهزاده احمد شاه و منله .

افغاني سرې میاشتې د ګران شهزاده سرپرستۍ لاندې د یوې خواخوږې امانتګې د هیواد په ټولو ولایاتو کښې پرانستې او هیلې خوا ځي د خپل مال بنسټ په تقویه کولو سره کولای شو چې د داخلي او خارجي مصیبت ځپلو سره د ضرورت په وخت کې ژیاته مرسته وکړي لکه څرنګه چې په تېر کال کښې افغاني سرې میاشتې د هیواد او نړۍ مصیبت ځپلو سره د ۲۹ ملیونو افغانیو معادل مرسته کړې ده .

د افغاني سرې میاشتې تقویه زموږ دیني فریضه او ملي وجیبه ده او موږ په کار ده چې د دغې عام المنفعه مؤسسې د مالي بنسټ د تقویې له کبله خپله وجیبه پر ځای کړو څو چې زموږ د مرستې په واسطه افغاني سره میاشت په هر وخت کښې د داخلي او خارجي مصیبت ځپلو ژیاتې مرستې ته چمتو و



تهیه کوونکی : « خالقی »

# د فلسطین د موقتی حکومت د جوړیدو مسئله

د فلسطین د خلکو د پاره د موقتی حکومت د جوړیدو په باب د مصر د عربی جمهوریت د رئیس پیشنهاد د دغی موضوع په هکله د بیلو بیلو اړخونو د روښانه کیدو سره ورځ په ورځ اهمیت پیدا کوی. په دی ډول چې د دغی نظریې طرفدار عرب د دغه موضوع د فلسطین د خلکو د حقوقو د تثبیتیدو په لیاره کې یو ګټور ګام بولی.

هرڅنګه چې اسرائیل غواړی په منځنی ختیځ کې د اوسنی حالت دوام وکړی چې په عربی نیولی سوو هیوادو کې د دوی مقصد ترسره سی، نو ځکه دوی په هیڅ ډول خوښ نه دی چې د عربو ترمنځ یو والی تامین او د دوی په ضد یوه واحده جبهه جوړه کړی، نو ځکه اسرائیل اوس زیاته خوشحاله دی.

د شمالی یمن او جنوبی یمن ترمنځ د نښتو دوام د عربو دنیا یې او ډیرو علاقه مندو حلقو ذهنیت یې ځانته راجلب کړی دی او بیا چې په قاهره کې د فلسطین د خلکو د پاره د موقتی حکومت د جوړیدو اجازه ورکړه د اردن حکومت مخالفت کوی او بیا چې د فلسطین د آزادی د نهضت رئیس هم په دغه برخه کې د انور السادات پیشنهاد و نه منلو.

د انور السادات د دوو ستی پیشنهاد په باب د اسرائیلو د مسئولو حلقو اراده او نیت د اسرائیلو د دفاع د وزیر د څرګندونو څخه په ښکاره ډول معلومیږی ځکه چې دوی ویلی دی «فلسطینیان یو مرکز او یو حکومت لری چې دواړه په عمان کې دی».

د دغه خبری څرګندونه کیږی چې اسرائیل په دغه پیشنهاد سره نا آرامه دی، په دی ډول چې د فلسطین د خلکو د پاره د یو موقت حکومت موجودیت د اسرائیلو د ګټو او غوښتنو څخه مخالف دی.

په منځنی ختیځ کې د دوو وروستیو جګړو په پایله کې او د اسرائیلو د اوسیدونکو د ګټو په مقابل کې د فلسطین د مبارزینو فعالیتونو د غه خبره څرګنده کړه چې سادات ولی دا ډول پیشنهاد وکړ او ولی د دغی موضوع په باب عکس العملونه وسوه.

هغه وخت چې د فلسطین مبارزینو د مونشن د المپیا په لوبو کې د اسرائیلو لوبی کوونکو په مقابل کې د خپلو خلکو د مشکل د آوازی د پورته کیدو د پاره داسی اقدامات وکړه چې د دوی د دغه پیش آمد په نتیجه کې د اسرائیلو (۱۳) تنه لوبی کوونکی ووژل سول.

په وروستیو ورځو کې د دغه موضوع دا ډول شکل ځانته ونیو چې کرار کرار بن او عربی هیوادو علاقی د سره مخامخ سوه او تر داسی اندازی پوری یو شمیر هغه هیوادونه چې د اسرائیلو د ګټو څخه ملاتړ کوی د عربی هیوادو څخه بیخی زیات آزرده سوی دی.

د دغی آزردګی علت ښایی په دغه موضوع کښی پیدا کیږو چې په عربی هیوادو کې پل سوی وه چې عربی هیوادو ولی د خپل قدرت څخه کار وانه خیست او مبارزینو ته یې ولی توصیه و نه کړه چې لوبی کوونکی خوشی کړی، خصوصاً هغه وخت چې د المان اتحادی جمهوریت صدر اعظم ویلی برانت په دغه برخه کې د انور السادات څخه د مرستی غوښتنه کړی وه.

(پاته په ۳۱ مخ کې)

د انیس پوال په قلم

# روژه او د هغې اجتماعي ښېگڼې

روژه د اسلام مهم رکن او د روژې په مبارکه میاشت کې د هغې نیول سره له خپلو آدابو او شرایطو پر هر بالغ، عاقل، مقیم او روغ رمټ مسلمان نر او ښځه باندې چې کوم بل شرعي عذر و نه لري فرض ده او څوك چې د دغه اسلامي امر څخه پرته له شرعي معذرت نه غاړه وغړوي هغه د لوی گناه مرتکب گرځي او کوم مسلمان چې په قصد یو ورځ روژه وخوري او د شریعت د حکم سره سم کفارت پر واوړي نو به د یوې روژې پر ځای دوې میاشتې پر له پسې روژه نیسي او دغه امر دا حقیقت ثابتوي چې اسلام د فرض شوې روژې په نیولو سره څومره ټینگار کوي.

روژه داده چې یو مسلمان به سربېره پر دې چې په ټاکلي وخت کې خوړك او څښنگ نه کوي، د جماع څخه به ځان ساتي د بدن ټول غړي به د گناه، ناوړه و چارو او بدو اعمالو څخه واگرځوي او بالعکس مالي او ځاني عبادتونه به کوي او خلکو ته به ئې په لاس او خوله خیر رسوي.

روژه زیاتې اجتماعي ښېگڼې او اغېزې لري او یو کامل مسلمان چې روژه د خپلو ټولو شرایطو سره نیسي څکه چې پر هغه د لوږې زیات تکلیف تېرېږي نو د وږو او خوارانو د سخت حالت څخه خبرېږي او په نتیجه کې ئې د خوارانو او وږو سره مهرباني او زړه سوی پیدا کوي، اراده ئې قوي کېږي، روح ئې تذکیه او بدن ئې پاکېږي او د عالي اخلاقو خاوند گرځي.

کوم مسلمان چې نفس پرست، شهوت خوښوونکی او خېټور نه وي هغه هیڅکله روژه نه خوري بلکه د روژې د نیولو سره بدني او مالي عبادتونه هم کوي او تل په خپل لاس او خوله نورو مسلمانانو ته خیر او گټه رسوي.

د روژې نیول د مسلمان د پاره که څه هم یوه اسلامي فریضه ده خو دا یو ازموینه دی او پاك خدای (ج) په موږ امتحان کوي چې آیا موږ ئې امر منو او که څنگه او آیا موږ په خوله مسلمانان یو او که واقعي او حقیقي مسلمانان.

مسلمانانو ته روا نه ده چې پرته له شرعي عذر څخه روژه وخوري او د دغه امر مخالفت وکړي او څوك چې دا کار کوي د هغه د ایمان کمزوري ده نو باید هر مسلمان د روژې په نیولو سره خپل دیني بنسټ تقویه او مسلماني پیاوړې کړي.

موږ بختور یو چې د اسلام په سپیڅلي دین مشرف او مسلمانان یو نو باید د اسلامي احکامو سره سم روژه ونیسو او د اسلام نور حکمونه هم پر ځای کړو او که کوم گناه را څخه پېښه شوه باید توبه پرو کاږو او ځان مقصر و گڼو.

خو باید کوشش وکړو چې په هیڅ توگه د اجتماعي گناه او هغو ناوړه او غیر اسلامي اعمالو مرتکب نه شو چې د هغو له کبله زموږ همنوع ته مادي او معنوي زیان رسېږي او بل څوك تاوان او اذیت ویني.

راځئ چې روژه او نور اسلامي احکام په صحیح توگه پر ځای او هغسې نیکې کارونه او خیر په چارو سرته ورسوو چې د هغو له کبله د پاك خدای (ج) او د بندگانو رضا حاصلېږي او موږ پرې نیکه نامه او کامیاب کېږو او باید د ټولو بدیو او ناوړه چارو څخه نه یوازې په روژه بلکه په هر وخت کې ځانونه او نور کسان وساتو

د فیض محمد وزیري تتبع او لیکنه:

# د تاریخ یوه ګوښه

## دوهمه برخه

# کندهار ته د میرویس خان راتګ

په دې ترتیب میرویس خان د ملي پرو ګرامو د عملي کولو د پاره د ډېرو آرزوګانو سره په خورا شوق خپل ګران هیواد ته راروان شو او د راروان کیدو په

...خت کښې څو لیکونه د ګرګین په نامه د ځانه سره ...او اخستل چې په هغو لیکو کې پر ګرګین باندې ...سپارښت شوی و چې د میرویس خان بې مشوره په کار

...ه کوي او ده ته به پیر ته هغه پخوانی منصب ور سپاري ...و ډېر احترام به ئې کوي د ده عزت او شرافت به محترم ...کڼي . او حتی اعتماد الدوله میرویس خان ته په خصوصی ...توګه وویل چې د ګرګین په کړه او ...ضعیت پسې دې څارونی او هم ئې یو ...پر سوی سند ور کړ چې که ضرورت

...یش سی له هغه څخه کار واخلي د دیوان ...یګ هم میرویس خان ته څو لیکونه ...ر کړل او په هغو کښې ئې لیکلي وه

...ې «میرویس خان یو له هغو هوښیار انو ...ملکو څخه دی چې د پاچا سره ئې ډېر ...و مکو نه کړي دي» کله چې میرویس خان ...څه لیکونه وا خستل سمد ستي د کندهار پر لور دی را روان سو او په لاره کښې ئې د راتګ ...و د هر کلي کیدی او هر پښتون د ده په راتګ خوشحالی

...کو له څو چې د کندهار ښار ته را ورسیدی میرویس خان ...ه کندهار کښې په ډېر ګرم جوشي سره استقبال سو ...و د ښار ټولو خلکو ئې هر کلی وکی ګرګین که څه هم

...ه ښکاره د ده په استقبال وکی او د میرویس خان احترام ...ی پر ځای کړ، مګر په زړه کښې د ډېره قهر او کینې ...سره خــو ږل کیدی او د انتقام لاره ئې پلټله ...صوصاً له هغه وخته څخه چې ( د اصفهان د دربار

تهدیدنامې او سپارښتنامې ئې ولوستلې) په دې وخت کښې میرویس خان د ګرګین څخه اجازه واخیستله خپل کور او خپلې علاقې ته ولاړ هلته اکثره خوانین او مشران

او د ده ملګري د ده د مجلس د پاره راغلل او هم ډلې ډلې خلک د حج د مبارکی د پاره د ده ته راتلل خو ټول په پښتانه دی ته منتظره چې دی څه کوي؟ او څه وائي؟ غوښته ئې

چې ویو هیږي څو میرویس خان د قوم د نجات او ازادولو په باب دوی ته څه زیري راوړي؛

ګرګین د دې مجلسو د تګ او راتګ څخه بې خبره نه و، مګر د انتقام اخستلو د پاره ئې غوښته چې یوه پلمه پیدا کړي او داسې کار وکړي چې میرویس خان د قوم او اولس په نظر کښې

سپک او ذلیل ښکاره کړي نو ئې یوه پلمه پیدا کړه هغه دا وه چې میرویس خان یوه لوردر لوده چې خورا ډېر ښایسته وه .

ګرګین میرویس خان ته حال واستاوه چې دغه لور د ده زوی ته ور واده کې د دغه خبری په اوریدو سره میرویس خان ته څه اندیښنه پیدا شوه ځکه چې له یوې خوا او را ستول د ده له



میرویس نیکه

پښتني غیرت سره مخالف وه او بر سیره پر هغه ئې د ده قدر او عزت د قوم او اولس په مخ کی سپکاوه او له بلې خوا په داسې وخت کښې چې میرویس خان لانو اوسه پښتانه

د خپلې عقیدې او عملیاتو څخه پوره نه وه خبر کړي د دې حاکمانه امر ردول د ده هغه جوړه کړي نقشه ورو ړانو له .

ځکه نو د قوم مشران او غټان ئې را غونډ کړه او ملي جرګه ئې جوړه کړه چې دا خبره ور ته وکړي او د ملي قانون په قرار تر مشورې وروسته یوه فیصله وکړي

داځکه چې په پښتنو کښې چې د ملي کارونو د پاره د مشورې د مجلسونو جوړول رواج لري که څه هم معامله ډېره کوچنۍ وي په افرادي توګه ئې پيله ملي مشورې ته فيصله کوي دا مجلسونه د پښتنو په اصطلاح (جرګه) بولي دا جرګې چې څنګه فيصله وکړي هر پښتون ئې عملي کول پر ځان لازم څه بلکه ملي فرض ګڼي نو په دې نسبت ميرويس خان هم له دې دستور څخه کار واخيستي او د قوم مشران ئې راوبلل.

ميرويس خان د مخه تر هغه چې ګرګين ته منفي يا مثبت جواب ورکړي د قوم مشران ئې په کوهکران کښې د مشورې د پاره راوبلل، لمړي ئې د ګرګين د دې غوښتني په شا و خوا کښې خبرې شروع کړې ي پښتانه چې طبعاً پر ننګ او ناموس مينان دي لوی او کوچني ئې داسې وائي (دنيا تر سر چار سر تر ناموس) او طبيعي ده چې د دې خبرې په اورېدو ټوله روحاً متأثر شول د غيرت وينې ئې پرجوش راغلې او ميرويس خان ئې د لور د استولو څخه سخت منع کې او مقاومت ته ئې تشويق کې او پښتني قسم ئې ياد کې چې دده په مرسته کښې تر سر او مال تېرسي کوم وخت چې ميرويس خان دوی د ځان په شان متأثره و ليدل په زړه کښې ډېر خوشحاله شو مګر په ښکاره ئې دوی ته د صبر توصيه وکړه او وې ويل: بهتره داده چې بلا په خوب کښې ميده کړو. که تاسې ته لازمه ده چې پر خپلو خبرو ټينګ سی او خپل راز پټ وساتئ او پرما اعتماد ولرئ يقين وکړئ چې له دښمنانو څخه په سخت انتقام واخلو خو اوس خاموشي تر هر څه بهتره ده ځو له به په پټه خوله دا کوښښ وکړو چې ظالمان ورک شي کله چې مناسب وخت راسي، نو زه به پر تاسې غږ وکړم هغه وخت نو بايد ټوله تيار يو او ظالمان له وطنه وباسو.

نو موږ ی جرګه پای ته ورسيدل خو دا سې فيصله ئې وکړه چې «قطعاً دې د ميرويس خان لور ته اصفهان ته نه استول کيږي مګر دا دې د پاره چې ګرګين غافل وساتو او په حال خبر نسي، بله تجلي دې د مير ويس خان د لور په عوض کي ور واستو له شي څو چې د ګرګين د ملا کولو د پاره فرصت پيدا کړي و...

تر دې فيصلې وروسته بيا نو لو په قرآن، تو دې چوړ ی

او مالګه قسم وکړې او د خپل پخوانۍ قول پرو فائي بيا ټينګښت ئې ورکې او وې ويل هر څوک چې له خپلې خبرې واوړي (زن طلاق) به وي د پښتنو په عقيده دا قسم سخت ترين د قسمو دی چې ميرويس خان ته ئې د هغه په ياد او ډاډ ورکې.

تر هغه وروسته ميرويس خان يوه بله تجلي چې د ده په کور کې روزلی شوې وه د خپلې لور په نامه د ګرګين سرای ته واستوله او هغې تجلي هم وويل چې زه د ميرويس خان لور يم په دې توګه د ګرګين هغه پلمه چې د ميرويس خان د انتقام اخستلو د پاره ئې جوړه وه بې اثره پاته شوه او هم ګرګين وغوښتل ي چې ميرويس خان تر نور په زړه کښې څه نلري او د هغه فوائدو او بيا ده د ظلمو د پاره چې زمينه برابره سوه ځکه ئې نو تر خپلو سه پورې د مير ويس خان زړه ساتي او په هر کار کښې به ئې ده د رايو مراعات کاوه ميرويس خان هم داز نه ارادی سی چې داسې ښکاره کړی چې د ګرګين ټول ظلمونه چې دده پر قوم ئې کړې دی هير کړې دي او خپلوئې داسې حدته ورسول له چې ګرګين پر ده باندې کامل اعتماد پيدا کي.

يوه مياشت وروسته چې بيا د ګرګين د ظلم او د په زور کښې شو او لمړی هری خوا ته خبری شوی ځکه نو د پښتنو مشران په تنګ سول بيا پر مير ويس خان د اټول سول او د ګرګين د ظلمو څخه ئې شکايتونه وکړه او بيا د پښتنو يوه بله جرګه جوړه شوه مګر دا پلا د کوهکران په کلي کښې نه وه بلکه په «مانجه» کښې جوړه سوه چې د کند هار شمال شرق ته تخميناً د شلو مترو په فاصله د کا بل پر لا ر واقع ده او په چار صفا پوړی مهتی ده دا هغه وروستی جرګه وه چې د قوم د ازادي د پاره وشوه او د هغه لاندی مشران او خوانين پکښې راغونډ شوي وه.

(۱) سيدال خان ناصر: چې د هوتکو د دودی يو مهم او زړه ور جنرال او سپه سالار و.

(۲) بابو جان بابی (۳) بهادر خان (٤) يوسف خان چې د هوتکو د ښتلو څو اتانو څخه ؤ چې په سيوري کې او سيدی. (٥) عزيز خان نورزی (٦) ګل خان بابی (۷) نور خان بړيڅ،

دا سړی د بې ځو له خانانو څخه ؤ او په ښوراوك کې اوسېدی.

۸- نصرو خان الکوزی ۹- یحیی خان (د میرویس خان ورور) ۱۰- محمد خان (د میرویس خان وراره) دې جرګې بیا په قران ګواهي ورکړې او د وفادارۍ لوړه یې وکړه. بیا نو میرویس خان د اعتماد الدوله کاغذ دوی ته ورښکاره کی او ورته وې ویل: «چې د پارس حکومت هم د ګرګین څخه خوښ نه دی او ماته اجازه راکړه شوې ده چې ګرګین د منځه ورك کړم او پښتانه د ده د ظلمه خلاص کړم مګر دا په هغه صورت کښې امکان لري چې تاسې ټول له په یوه زړه او یوه اراده او یوه ژبه زما سره ملګري شی» ټولو د ده د امر د اطاعت قول ور سره وکړ او ده ته یې د خپلې ملګرۍ پوره اطمینان ورکړ. تر دې وروسته نو میرویس خان خپل هغه پلان چې ده د خپله ځانه سره سنجولی و، دوی ته وواېه. ټولو د ده عاقلانه او مدبرانه پلان ومانه او خوښ یې کړ نو د جرګې د خوا یوه خان ته امر وشو چې ګرګین ته دې مالیه نه ورکوي او خپل قوم دې د ګرجیانو په مقابل کې پورته کړي. کوم وخت چې د بلوڅو او کاکړو مشران خپلو علاقو ته ورسېدل دستي یې خپل قومونه وپارول او د مالیې له ورکولو څخه یې سرونه وغړول. دا لومړی وار ؤ چې ګرګین د داسې سخت او برملا انکار سره مخامخ سو. په درد ورغی، فوراً یې ټول ګرجي جګړن او غښتلي چې یوازې د همداسې چدی کار د پاره ساتلي سوي وو، د بلوڅو او کاکړو د سرکوبۍ د پاره هغې خواته واستول. میرویس خان چې دا وضعیت په ډېر دقت کتی نو ګرګین ته راغی او د یوړنیو قومو د سرکښۍ له امله یې تاسف وکړ او د ګرجي لښکرو له لېږلو څخه یې خوښي څرګنده کړه او ضمناً یې د ښار د باندې د کوکران باغ ته ګرګین دعوت او مېلمه کړ او داسې بانه کړه چې په دې مېلمستیا کښې غواړي د خپل قوم دوه غښتلي سرداران ده ته معرفي کړي چې د حکومت په خدمت کې شامل سي. ګرګین دا مېلمستیا ومنله د مېلمستیا ورځ را ورسېدله. د پښتنو ملي مشر میرویس خان د قوم د مشرانو په مصلحت څو تنه پښتانه په مخصوصو ځایو کښې سره وویشل چې هلته د ده اشارې او فرصت ته منتظره وي.

ګرګین د خپلو ملګرو او څو تنو محافظینو سره د باغ خواته راغی. میرویس خان او د ده ملګرو په ډېره ګرمۍ سره د ده هرکلی وکی او ښه راغلی یې ورته وویل. مېلمستیا ډېره مجلله وه هر ډول شراب د دوی د پاره راوړل شوي وه او هر مېلمه دومره وڅښل چې بې هوښه ولوېدل. په دې مېلمستیا کې د مېلمنو د مرګ شراب تهیه سوي وه. پخپله میرویس خان بر ټاکل سوي وخت د انتقام اشاره یا د وطن د ازادۍ ږغ چې دا ټولې مقدمې او نیرنګونه د هغه د پاره وو، خپلو ملګرو ته خبر ورکی په دې اشاره او ږغ ګرګین او د ګرګین ملګري د پښتنو تر تورو تېر سول دا د هغو بې ګناه پښتنو د وینو انتقام وه چې د ګرګین د شخصي مقصدو په سبب قرباني سوي وه.

ګرګین و وژل سو مګر د کندهار د ښار نیول او فتح کول اسانه کار نه و ځکه چې په ښار کې ډېر د ګرجیانو عسکر پراته وه. نو میرویس خان پخپله د ګرګین کالي واغوستل او د ده ملګرو د ګرګین د ملګرو کالي واغوستل او د هغو پر اسانو سپاره سول او د تیر ماښام پر وخت په هغه دبدبه او برم لکه ګرګین چې روانېدی د ښار خواته روان سول او نور د ډېر زړه پښتانه یې د ښار په شاوخوا کې پټ کښېنول او چې د ده اشارې ته منتظر وو. کوم وخت چې دروازې ته ورسېدل ګرجي پهره دارانو پر میرویس خان باندې د ګرګین خیال وکی په دروازه کې یې پرېښول چې ښار ته ننوزي کله چې میرویس خان دوی ښار ته ننوتل د دروازې او د کلا پر پهره دارانو یې حمله وکړل په دې وخت کښې هغه د ډېر زړه پښتانه چې د باندې اماده وه هم ښار ته را داخل سول او ګرجي عسکر یې ټول تار و مار کړل او ښار یې ونیوی. دستي میرویس خان اعلان وکی او جارچي جار وواهه چې د هغه چا مال او ځان په امان دی چې ګرجي او پارسي عسکرو ته ساتنه او ځای ورنکړي. د ښار خلکو د ازادۍ اعلان واورېدی نو د متجاوزینو ګرجیانو سرپناه او د ساتنې ځای نه ورکول ډېر مړه او و تښتېدل او په دې صورت د کندهار ښار چې د پارسیانو ستر ګوره سری وی او حملې به یې پر کوټ بیا د پښتنو د ملي حکومت مرکز سو.

مصاحبه کوونکی نعمت الله «مروند»

# د شطرنج د لوبې د زده کولو دپاره هیڅ قاعده و قانون نشته دا ځکه چې په ټول عمر کې د شطرنج د لوبې دوې بازۍ یو ډول نه راځي

**د کندهار نامتو شطرنج باز په داخل او خارج کې د اولمپک دریاست بلنې ته چمتو دی**

د هیواد د شطرنج د لوبې قهرمان ښاغلی محمد علي (هوتک) چې د ده د وینا سره سم (٦١) کاله پخوا د کندهار د ښار په دریمه ناحیه کې زیږیدلی دی، په ابتدائیه دوره کې ئې

د ښوونځي تر فراغت وروسته څو موده ماموریت کړی دی او بیا د ځینو معاذیرو له کبله د رسمي ماموریت څخه ګوښه شوی او آزاد شغل ئې د ځان دپاره غوره کړی دی.

د دې لپاره چې ښاغلی محمد علي خان ښه تر ا وپیژنئ نو زموږ همکار د هغه سره یوه مرکه کړې ده چې په دې ډول په مرکه پیل کوي:

تاسې ته د شطرنج د لوبې تنده د څه وخت څخه درولاړه شوې او په دې لاره کې مو تشویقوونکي څوک ؤ؟ همدا رنګه د نورو لوبو سره هم مینه لرئ که یا؟

- په پوره حساب که ووایم چې د کوچنیوالي څخه ما د شطرنج سره مینه درلوده، بیخا به ته وی؛ ځکه چې زما خدای بښلي پلار هم د شطرنج سره علاقه درلوده او هر وخت به ئې چې له خپلو ملګرو سره د شطرنج لوبه کوله نو زه به هم ورته ناست وم او د لوبې ننداره به مې کوله.

خو په بل حساب مې د شل کلنۍ څخه مینه او علاقه ورسره پیدا شوه ځکه ما به خپله د شطرنج لوبه د ملګرو سره کوله چې په دې حساب نو یو څلویښت کاله کیږي چې شطرنج کوم او



ښاغلی محمد علي خان هوتکی

تشویقوونکي مې خپل فکر او د لوبو کڅل وه؛ یعنې کله چې به مې لوبه په ګټه تمامه شوه او یو ډول خوښي به مې احساس کړه او فکر به مې کاوه چې که په هر میدان کې بریالی شم څومره به ښه وي. څو د ادې اوس مې تصور په حقیقت بدل شوی دی او د ګران هیواد د شطرنج د قهرماني لقب مې وګټه، اما د نورو لوبو سره بدبختانه ووایم که خوشبختانه هیڅ اشنایی نه لرم خو تر هر رنګه ساز او اواز او نورو تماشاؤ مې د شطرنج لوبه خوښه ده ځکه د شطرنج لوبه سړی داسې مشغولوي چې هر رنګه خواشیني د سړي څخه هیروي که ووایم چې که سړی په کور کې مړی هم وي شي او دی پر شطرنج ناست وي تر څو به ګوره مړی ی پیادونه شي څو خپله لوبه تر پایه ورسوي.

کله چې مې د ښاغلي هوتک له خبرو تر تمامیدو وروسته بله پوښتنه څنی وکړه نو مسکا شو او وی ویل:

څرنګه چې په ټول عمر کې د شطرنج د لوبې دوې بازۍ یو ډول نه راځي نو ځکه د هغه لپاره داسې قاعده و قانون باقاعده معلوم نشته چې هغه دې د ښوونکي له خوا وشاګرد ته وویل شي او شاګرد دې د هغه تر ښوونې لاندې ځان د بریالیتوب پړاو ته ورسوي نو که ووایم چې د شطرنج د لوبې د زده کړې لپاره

بهتر ن ښوونکی د سپی ی خپل فکر او علاقه ده پیښایه په ته وی . خوز ما استاد او ښوونکی هم زما خپله علاقه او فکر و چی د شطرنج ه لو بی سره می در لوده .

همدارنګه د ښاغلی محمد علی ځغه می و غوښتل چی د شطرنج د لو بی د ډولونو او اختلافونو په باب معلومات را کړی . ده هم په خوښی سره زما غوښتنه و منل او په دې ډول ئې توضیحات را کړل :

د شطرنج لو به اساساً دو . ډوله ده یوه شرقی لو به بله اروپائی لو به ده چی ددې دوا ړ و لو بو په منځ کی څو تو پیر و نه سته . تر کمه ځایه پوری چی زما په فکر کی دی هغه په دې ډول دی :

۱ـ په شرقی لو به کی د پیاده تګ یو . خانه او په اروپائی لو به کی په لو مړی حرکت پیاده دوی خانی هم تلای سی .

۲ـ په شرقی لو به کی چی پیاده د تختی و روستی خانی ته ور سیږی او د هغه خانی مهره مهره سوی وی نو د هرشی خانه چی وی پیاده د هغه شی حکم لری ؛

د مثال په تو ګه که پیاده د وزیر خانی ته ورسیږی پیاده وزیر کیږی او که د رخ خانی ته ورسیږی رخ کیږی او په اروپائی لو به کی چی پیاده و هری و روستی خانی ته

ورسیږی نو د لو بغاړی آرزو ده هرشی چی ئې غوښت هغه شی جوړولای شی ، مثلاً که د فیل د خانی پیاده ځان د فیل و خانی ته ورساوه اوس نو د لو بغاړی خوښه که فیل غواړی ، که وزیر ، که رخ او که آس .

۳ـ په شرقی لو به کی پاچا په دی شرط چی کشت ئې نه وی خوړ لی یوه نیمه خانه د تلو حق لری خو په اروپائی بازی کی چی پاچا حرکت نه وی کړی دوه چاله

دیوه چال حیثیت لری هغه په دی ډول کله چی د کلا په جوړولو کی پاچا د رخ و خوا ته کښېنستی نو په همدی چال رخ د پاچا د او ړی او څنګ ته ئې کښېنی .

٤ـ په شرقی لو به کی لشیدل ( یعنی پاچا پاته کیدل ) دایمه لو بی د ګټلو حکم لری . مګر په اروپائی بازی کی لشیدل نسته . که یو طرف پاچا او وزیر بل طرف پاچا او

پیاده ولری نو دغه لو به چار مهره ( مساوی ) بلل کیږی خو په اروپائی لو به کی که یوه خوا یوازی پاچا ولری او مقابل طرف یو پاچا او یو پیاده ولری او و کولای شی خپل د غه پیاده ژوندی کی نو هغه خوا چی یوازی پاچا لری مات بلل کیږی .

۵ـ په شرقی لو به کی د دا تو په او ډلو کی پاچا د مقابل ضړی وزیر ته مخامخ ایښودل کیږی مګر په اروپائی لو به کی پاچا او پاچا ته مخامخ ایښودل کیږی .

ښاغلی هو تك زمادی پوښتنی په جواب کی چی ته اروپائی او یا کوی که شرقی او هم معمولاً په افغانستان کی کمه لو به رواج لری ، وویل :

پخوا می شرقی لو به کول مګر د څو کلو نو راپه دې خوا می اروپائی لو به شروع کړی ده او همدا رنګه بایدووایم چی په افغانستان کی اوس همدا اروپائی لو به رواج ده .

ده د یوی بلی پوښتنی په جواب کی ئې دا سی څرګند کړه .



ښاغلی محمد علی کینی خوا ته د منځ افرد لو بی په حال کی

د میوا د د خپلوا کی د (۱۷) تلین د نمانځلو په خاطر د ملی دفاع د وزارت د اولمپیك د و یاست له خوا د شطرنج نکړه لو بغاړی تول او مرکزته وغوښتل سول چی په هغه جمله کی زه هم وم . مسابقه د جشن د لومړی ورځی څخه شروع سوه څو تر اوومی شپی پوری چی د جشن و روستی شپه وه د لو بی قهرمان سوم او په هغه شپه د قهرمانی کپ د مرحوم ۰ اعلیحضرت سپه سالار شاه محمود خان له خوا د یوی غونډی په ترځ کی راکړه سو چی د ا موضوع هغه وخت مجلو او ورځپاڼو د عکسونو سره نشر کړه .

لیکوالکی عبدالصمد «امین»

# د کندهار میوی

د کندهار ولایت یوه مسموده او پراخه سیمه ده چی پرسیمه پرتلو او دانوده هغه وچی اولندی میوی د پاملرنی وړ کرهیدلی دی او ددی سیمی د کرنی

د حاصلاتو یوه لویه او پراخه پیمانه تشکیلوی او خارج ته د میوواو د میوی د صادرولو یوه مهم قلم د کندهار د میوی صادرات دی.

په کندهار کښی په بیلو بیلو لسوالیو کښی بیلی میوی پیدا کیږی او د هغو حاصلات داو یو په زیاتوالی او اقلیم پوری اړه لري. که څه هم د کندهار په زیاتو برخو کښی

د باغونو جوړول د پخوا، شان دی خو بیا هم د هغه حاصلات د پام وړ شمیرل کیږی.

د کندهار په بیلو سیمو کښی لکه ارغنداب، ډنډ، میوند، پنجوائی او نورو سیمو کی ډول ډول میوی لکه

زردالو، انځر، شلیل، شفتالو، ناک سیب، انګور، انار او داسی نوری میوه لرونکی درختی روزل کیږی چی د هغو حاصلات خارج ته صادریږی او هم د هیواد په دننه کی مصرفیږی.

د لته د تور په میاشتی کی ودوسته له هغه چی توت پاخه شی د زردالو او منو فصل رارسیږی او ددی دوروډولو میوو څخه استفاده د تور د لومړی نیټی څخه شروع کیږی

چی د دغو تازه میوو د صادراتو زیاته اندازه چی هند او پاکستان ته ځی، په هم دغه وخت کی شروع کیږی او ورو سته له هغه د انګورو او انار و فصل رارسیږی.

هغه میوی چی د کندهار د ګمرک له لاری خارجی بازارو ته عرضه سوی دی د هغو په هکله د کندهار په ګمرک کښی د تجارت د وزارت د تجارتی احصائیی د لوی

مدیریت یوی منبع وویل چی د ۱۳۵۰ کال په اتو لومړیو میاشتو کښی ۲٤٦٩٢٢٠ کیلو تازه میوی خارج ته په ترانزیټی او آزاده توګه صادری شوی دی او سږ کال

هم په دی موده کښی ۹۳۷٦٤۳ کیلو تازه میوی خارج ته استول شوی دی خو د تازه میوی د صادریدو اندازه

چی د ترانزیټ په توګه هند ته استول شوی دی داسی راپورر د کړه شوی دی: د ۱۳۵۰ کال په اتو میاشتو کښی انګور (٤٧٩٥) ټنه او انار (۱۸۹٦) ټنه او د (۱۳٥۱) کال په

اتو میاشتو کښی هند ته (٦۱۰٤) ټنه انګور او (۲٤٤۰) ټنه انار صادر شوی دی او د انارو صادرول اوس هم دوام لری.

ذکر سوی منبع وویل چی د انګورو صادرول د اسد له ۲۵ نیټی څخه د عقرب تر آخره پوری دوام در لود.

د تازه میوی سوداګر او تجار د ګمرک له لاری خپلی میوی د مقرراتو سره سم د موټر په واسطه هند ته صادروی او د هغه په عوض کی مالونه راوړی. د تازه

میوی صادرول محدود نه دی، هر څوک چی تجارتی جوازنامی لری کولای شی چی خپل متاع خارج ته صادر کړی لکه چی معلومه شوی ده سږ کال د تیر کال

په مقایسه (۱۳۰۹) ټنه انګور هند ته زیات صادر شوی دی.

د کندهار د ښلو ډولو انګورو له جملی څخه شندوخانی، ګردک، ایته او خیر غلامان خارج ته د صادرولو

د پاره مساعد دی. په کندهار کښی د پنجوائی، ارغنداب ډنډ او میوند ولسوالی له هغو ځایو څخه دی چی هلته د انګورو باغونه زیات او حاصلات ئی ډیر دی.

په خارجی بازارو علاوه د انګوری حاصلاتو زیاته اندازه په آزاده توګه د کندهار او د ولایاتو په بازار کی پلورل کیږی او هم یو زیات مقدار د کشمشو او آبجوشو په توګه وچوی.

په کندهار کښی په زرو د انګورو باغونه سته چی دامیری، ایته، سپین کشمش، سره کشمش، سره لعل سره صاحبی، سره کلمک، سپین کلمک، حسینی

عسکری، شیخ علی، تورکندهاری، سپین کندهاری، خال چینی، خلیلی، روچه او نور ډولونه انګور لری.

انارو په هکله د ارغنداب سیمه د انارو د حاصلاتو
پاره په ټوله مساعده ده باغوانو نکو په دې ورو ستیو څو
کلو کښې د انارو د نیالګیو په ایښودلو او بولو او
کیمیاوي سرې په استعمالولو د انارو په حاصلاتو کې
ثبات بدلون راوستلی دی سږ کال د انارو د حاصلاتو
اندازه د قناعت وړ ده او د تیر کال په مقایسه زیاته اندازه
ته صادر شوي د تیر کال یوه اندازه عربي هیوادو ته

او استول شول نو له دې کبله چې دغه د خرڅلاو
پیسه او بیه د ډاډ وړ ده سږ کال هم ۵٤٣٦٦ کیلو
ادعربي هیوادو ته استول شوي دي .

په کندهار کښې د انارو خوړل ډیر رواج لري
دې کبله چې هم ارزان دي او هم په پراخه پیمانه
ا کیږي . د دې ځای خلک د انار او ماهیانو خاصې
علي هم لري .



د کندهار په ګمرک کې د تازه میوې کوارچې
چې خارج ته د صادرولو د پاره آماده دي

د ارغنداو په سیمه کښې به زرهاو و د انارو باغونه ستړه
د کندهار چوبي انار په نامه دي چې ډیر د ستاینې
دي د اړول انار چې پوست ئې زیات مقاومت لري

نکه ئې په کوډواو دوکانو کې څړوي او حتی
می هم وژي ، یوه باغوان نکی د مصاحبې په ترځ کښې
ل چې د انارو د حاصلاتو د زیاتوالي ، لوړ توالي
د رنګ د ښه والي د پاره حیواني امبار او ایرې ډیره
زه نا که دی ده وویل حیواني امبار د انار نیالګی ته ښه
الی مو د رسوي او د ایرو په استعمالولو د انار د نیالګی
په خاورو کی ډیری موذي چونډۍ پسته پاتیږي
انارو د پوست سودوالی هم په دې چال پوري اړه لري

د انار پوست څخه د چرمګرۍ په صنعت او د
رنګریزۍ په چارو کې څه استفاده کیږي .

په عمومي ډول د کندهار د باغو د انارو حاصلات په
روان کال کښې له شلو زرو ټنو نه زیات اټکل شوي دي .
دا مقدار له هغه وخته چې انار د کوچنیانو د خوړلو لپاره

بازار ته راځي بیا تر هغه وخته پورې چې انار خارج ته
صادریږي ، پیشبیني کیدای شي .

د تازه میوې کمسیون :

د ۱۳۳۱ کال د مخه د میوې سوداګر د کندهار
تازه میوې بې له دې چې بڼې او صحي وي ، خارج ته

صادرولې چې د هغه په نتیجه کښې هم دوی ضرر کاوه
او هم د افغاني میوې بازار ټیټ شوي و
خو په ۱۳۳۱ کال کښې د دې نقصې د
لیرې کیدو د پاره په کندهار کښې
د تازه میو ی د کمسیو ن په نامه
یوه اداره منځ ته راغله چې په هغه کښې
د ښار د شپږ کروهي باغ لرو نکو
څخه څلور تنه او د تازه میو ی د
سوداګرو څخه څلور تنه نمایندګان او
څلور تنه منصفان شامل شوه او د هغه
د لاریې سره سم خارج ته د افغا نی
میوې داو می صادریدو څخه مخ ونیول
شوه .

له کندهار څخه خارج ته یعنې
هنداو پاکستان ته د تازه میوې برسیره
هر کال یوه پانه اندازه وچې میوې هم
د ګمرک له لیارې استول کیږي .

چې په ۱۳۵۰ کال کښې په آزاده توګه ۶۲۲۹۲۱۷
کیلو او سږ کال د حمل د میاشتې څخه ترعقرب پورې
۲۲۵۳۷۸۲ کیلو میوې د سوداګرو له خوا په آزاد ډول
هند ته استول شو یدې د ترانزټ په توګه سږ کال ۷۸٦۸
ټنه صادر شوي دي او اوس هم د وچې میوې صادرول
دوام لري .

هند ته له کندهار څخه د وچې میوې له جملې څخه
شکرپاره ، کشمش ، انځر ، آلو بخارا ، آبجوش ، هندکي
بادام او جوز استول کیږي او علاوه پر هغه زیات
مقدار طبي نباتات هم هند ته صادریږي په عمومي توګه
که څه هم د کندهار انار په داخل او خارج کښې
ډیر شهرت لري ، خو انګور له دې کبله چې هم په تازه
ډول او هم د وچې میوې په ډول یعنې د کشمش او آبجوش
په توګه خرڅیږي اقتصادي اهمیت لري .

پښتو کوونکی قندیلوال:

# مکتوبي بمونه

په دې وختو کې د پاکټو په مابین کې مکتوبي بمونه د یوه هیواد څخه بل هیواد او د یوه ښار څخه بل ښار ته د پوستې په ذریعه سره استول کیږي، د دغو

مکتوبي بمو ډېره برخه سیاسي نمایندګانو او د اسرائیلو لوړو مامورینو ته چې په خارج کې دي د فلسطین مبارزینو له خوا ور استول کیږي. دغه

د فلسطیني د مبارزینو یو نوی تاکتیک دی چې د اسرائیلو تش په نامه دولت په مقابل کې ئې اجرا کوي د فلسطین د آزادۍ غوښتونکو مبارزینو دغه نوی تاکتیک چې

په کار ئې اچولی دی، اسرائیل ئې هم په خپلو پوسته خانو کې او هم ئې په نورو هیوادو کې د ویرې او خطر سره مخامخ کړی دی. خو د فلسطین مبارزین

ادعا کوي چې دغه مکتوبي بمونه د اسرائیلو د خوا څخه ځینو هیوادو ته استول کیږي او د اسرائیلو د دغو لیږل سوي مکتوبي بمو په ذریعه ځیني فلسطیني

مبارزین چې په هغو هیوادو کې دي مړه یا ټپیان سوي دي. د دغو مکتوبي بمو مبارزه د ډېرې پخوا څخه د مبارزینو او اشغالګرانو ترمنځ رواج درلودی چې د هغه بمو

په ذریعه ئې ډېر مالي او ځاني تاوانونه ورپیښول. اسرائیلي تجاوزکارانو هر یو په مقابل کې د دغه ډول بمو څخه کار اخیستی چې د نوموړو بمو او پارسلو

په ذریعه ئې یو زیات شمیر عرب مړه او ټپیان کړل. خو وروستي پیښې چې د مکتوبي بمو او پارسلو د استولو څخه مابین ته راغلي دي تر اوسه پوري په دونه پراخه

پیمانه سره نه وې واقع سوي. د دې مبارزې نړۍ په ویره کې اچولې دی او هم د نړۍ امنیتي قواوې په دې لټه کې دي چې د دغه مکتوبي بمو او پارسلو مخنیوی

وکي او د نړۍ د هیوادو ویره هم د دغه څخه ده چې د دغو مکتوبي بمو او پارسلو د پاره کوم داسې وسایل تر اوسه پوري ندي جوړ سوي چې د هغو په ذریعه سره ځان ته معلومات پیدا کي او د دغه ډول بمو مخنیوی وکي

څکه چې نوموړي مکتوبي بمونه په عادي پاک... کې اچول سوي وي او د نړۍ ټولو هیوادونو ته استو... کیږي د امنیتي قواو د پاره دا کار ډېر سخت دی چې دو...

دی ټول هغه پاکټونه او پارسلونه چې په پوسته خانو ک... دي معاینه او تر کتنې لاندې ونیسي او هغه دې وګور... څکه چې د یوې خوا څخه هره ورځ په میلیونو مکتوبو...

او پارسلونه د یوه هیواد څخه بل هیواد ته استول کیږ... او د بلې خوا څخه په هره پوسته خانه کې په میلیونو... مکتوبونه را رسیږي او دوی نه سي کولای چې ټول له د...

وګوري څکه چې د دې کار د اجرا کولو د پاره زیات وخ... په کار دی او دوی نه سي کولای چې د هغې ورځې پوس... دی په ټاکلي وخت خلکو ته ورسوي نو په همدې سب... د نړۍ ټول هیوادونه په دغه مشکلاتو اخته دي.

د دغه تشریح او بیان څخه زموږ مرام دا دی چې نن غو... غوږوا یو چې د مکتوبي بمو استول د اسرائیلو خلک... او دفترونو ته د پوستې په ذریعه سره استول د الوتکو

تښتولو سره ډېر توپیر لري کوم وخت چې د فلسطی... مبارزین الوتکې د هوائي لینو څخه وتښتوي او د نوموړ... الوتکې د مسافرینو او کارګرو په بدل کې خپل ه...

مبارزین خوشې کې کوم چې په هغه هیواد کښې د الوتک... د تښتولو باد ازادۍ غوښتو د مبارزو په ګناه سر بندیان وي.

څو ورځې د مخه د فلسطین دري مبارزینو فیډرالي المان جمهوریت د لوفتهانزا د هوائي شرکت ک... الوتکه چې د لبنان او ترکیې ترمنځ د هوا ...

وتښتول او الوتکه ئې د یوګوسلاویا د زګرب په هوائي ډګر کې کښته کړه. د نوموړې الوتک... او د هغې د مسافرینو په بدل کې ئې د خپلو هغو درو مبارزینو ...

خوشې کول وغوښتل کوم چې د المپیا د مونیخ په پیښه کې ... بندیان سوي وو.

پاتې په ۲۸ مخ کې

سر بیره پر هغه چې دنړۍ ډیرو هیوادو د الوتکو
د تښتولو دپاره لازم اقدامات نیولي ؤ مګر بیا ئې
هم و نسوای کولای چې دفلسطین د مبارزینو مخنیوی ی دی

د الوتکو د تښتولو څخه وکی د مکتوبي بمو استول د
یو هیواد څخه بل ته نسبت د الوتکو و تښتولو ته
لږ څه ولو ته ډیر ګرانه او سخته ده چې د هغو مخنیوی
دې وکی ددې مکتوبي بمو د استولو څخه نه یوازې
اسرائیل بلکې د نړۍ ډېرو هیوادونه د ویرې او
ډول ډول مشکلاتو سره مخامخ سو یدي او د الوتکو
تښتول د نړۍ د هوا او ردې امنیت د ډېر خطر سره
مخامخ کړي یدي مګر د مکتوبي بمو استول د یوه هیواد
څخه بل هیواد ته د نړۍ پوسته خانې په خطر او ویره
کې اچولي دي.

د الوتکو تښتول په اوسنی شکل سره ډېر خطر
لري مګر د فلسطین مبارزین د خپلې خاورې د ازادولو
په غرض د هیڅ ډول قرباني څخه نه ویریږي او تل د خپلې
خاورې د ازادولو د پاره هر ډول قرباني ته
چمتو دي.

د مکتوبي بمو او پارسلو استول هم یو اسانه کار
نه دی یوازې د فلسطین مبارزین د خپلې خاورې
د ازادولو د پاره د دغه کار په کولو سره بریالي سو یدي
د فلسطین مبارزینو د خپل مرام د رسید و د پاره د اسرائیلي
تجاوز کارانو سره په داسې مبارزه لاس پورې کړي یدي
چې نه یوازې اسرائیل حتی د نړۍ ډیرو هیوادونه ئې
د ویرې او خطر سره مخامخ کړل او دې مبارزو نه
نه د اسرائیلو او نه د نړۍ د نورو هیوادو پام ؤ چې
د فلسطین مبارزین به په یو داسې یو عمل لاس پورې کوي
چې دوی به هر ګړی د ویرې او خطر سره مخامخ
کوي.

ډېره لیری نه ده چې د فلسطین ازادي غوښتونکي
مبارزین په یو داسې تاکتیکي مبارزه لاس پورې کي
چې نه تنها اسرائیل بلکه ډېر هیوادونه به په ډېره ویره
کې واچوي.

ډېره شربنه دا ده کوم وخت چې د ملګرو ملتو
موسسې په خپله اوه ویشتمه اجلاسیه دوره کې غونډه کول
او غوښتل ئې چې د الوتکو د تښتولو د پاره یو اساسي
لاره پیدا کي او د الوتکو د تښتولو مخنیوی وکی په دې
وخت کښې د فلسطین مبارزینو په نوی تاکتیکي مبارزو
لاس پورې کی او د نړۍ په هر ګوټ کې ئې د اسرائیلو
سیاسي نماینده ګانو او نورو لوړو مامورینو ته
مکتوبي بمونه واستول او د هغه بمو په ذریعه ئې د اسرائیلو
زیات سیاسي کسان زخمیان کړل د فلسطین د مبارزینو
دغې مبارزې نړۍ وال په ویره کې واچول د فلسطیني
مبارزینو دغې مبارزې د دښمن د قواو روحیات ضعیف
او دوی ئې په هر ځای کې د ویرې سره مخامخ
کړل.

هغو کسانو چې د دغې مبارزې وظیفه ئې پر غاړه
اخستې ده خپله وجداني او ایماني وظیفه ئې په پوره
ایمان سره پای ته رسولې ده او د خپلې خاورې د ازادولو
په غرض د خپل ژوند څخه هم تیر سو یدي مګر د ملګرو ملتو
موسسه په دې هڅه ده چې په الوتکو کې مسلح پیره داران
ودروي او هم د نړۍ په ټولو پوسته خانو کې داسې آلات
نصب کي چې مکتوبي بمونه کشف کي که څه هم ملګري
ملتونه هر ډول تدبیرونه د فلسطین د مبارزینو د پاره
په کار واچوي بیا هم نه سي کولای چې د فلسطین
د مبارزینو د غه ازادي غوښتونکي مبارزې دې ور
شنډې کي ځکه چې تر اوسه پورې د ملګرو ملتو هیڅ
یوه فیصله او اقدام نه دی عملي سوی او نه به عملي سي
د ملګرو ملتو د موسسې فیصلې او اقدام تش پر کاغذ باندې
عملي کیږي نه د عمل په میدان کې.

ملګري ملتونه نه سي کولای چې خپلې فیصلې
د اسرائیلو په دولت باندې عملي کي ځکه چې
اسرائیل د ملګرو ملتو یو غړی ی دی

او هم ئې د ملګرو ملتو منشور لاسلیک کړی بدی او ملګري ملتو ته ګله کولای شي چې پر هغو خلکو باندې دې خپلې فیصلې عملي کړي چې نه په ملګرو ملتو کې داخل وي او نه ئې د ملګرو ملتو منشور لاسلیک کړی وي لکه د فلسطین بې کوره او بې وطنه آواره ګان .

دا ډېره مشکله ده هغه هیواد چې د ملګرو ملتو غړی وي او هم ئې د ملګرو ملتو منشور لاسلیک کړی وي هغه د ملګرو ملتو فیصلې ته منې او پر بې کوره او بې وطن خلکو باندې ئې عملي کوي .

که د ملګرو ملتو مرام دا وي چې پر عربي هیوادو باندې فشار راولي چې د فلسطین د مهاجرینو سره مرسته ونه کړي د دغې فیصلې عملي کول بې ډېر مشکل کار دی .

د عربي هیوادو مناسبات د فلسطیني مبارزینو سره په هغه ډول سره روښانه او واضح دي ځکه چې د فلسطین ازادي غوښتونکي مبارزین د مهاجرینو په ډول په عربي هیوادو کې ژوند کوي او د عربي هیوادو له خوا د هغو سره کومک کېږي .

د بلې خوا څخه د ملګرو ملتو د موسسې له خوا هم د غو ازادي غوښتونکو مبارزینو سره د مهاجرینو په ډول کومک کېږي که د ملګرو ملتو موسسه او همدغه رنګه که لوی او کوچني هیوادونه غواړي چې د دغه پېښو مخنیوی دې وشي نو یوازې او ګټوره لاره ئې دا ده چې دوی باید د اسرائیلو د تش په نامه دولت باندې زور او فشار راوړي څو د ملګرو ملتو تېرې شوې فیصلې عملي کړي او د اسرائیلو دولت دې د دوی هغه ځمکې ور خوشې کړي کومې چې دوی په زور او ظلم سره لاندې کړې بدې او دوی ئې د خپلې خاورې څخه شړلي دي .

د اسرائیلو هغه ځمکني او هوائي حملې چې په ډېر بې رحمانه ډول سره ئې د فلسطین د خلکو پر کمپو باندې کوي او بوزیات شمیر کوچنیان او لویان ئې د دغو حملو په ذریعه مړه او یا ټپیان کېږي نو د فلسطین بې کوره مبارزین هم د خپل غچ اخستلو په غرض د هوائي لینو څخه الوتکې تښتوي او مکتوبي بمونه د یو هیواد څخه بل هیواد ته د پوستې په ذریعه استوي څو خپل انتقام د تجاوز کارانو څخه واخلي .

که د ملګرو ملتو موسسه په رښتیا سره د حق ملاتړ کوي نو دې پر اسرائیلي دولت باندې زور او فشار راوړي څو د فلسطین د خلکو ځمکې ور خوشې کړي او د ملګرو ملتو د غه کار ته به نړیوال په ښه نظر وګوري نه داسې چې د ملګرو ملتو موسسه داسې فیصله وکړي چې د فلسطین مبارزین د خپل حق د اخیستلو او خاورې د ازادولو په غرض محکوم او ګناه کاره کړي ځکه چې د دغې فیصلې څخه دا معلومېږي چې دوی په ښکاره ډول سره پر تجاوز کاره او تش په نامه دولت ملګري او دوی د هغو حمایه کوي باید د ملګرو ملتو موسسه داسې فیصله دلیکښ عملي کړي چې د اسرائیلو دولت نور د فلسطین پر بې کوره مبارزینو باندې ځمکني او هوائي حملې ونه کړي او د دوی کوچنیان او لویان مړه او ټپیان نه کړي او د دوی هغه ځمکې چې اسرائیلو په زور لاندې کړې دي بېله کوم قید او شرط څخه ور خوشې کړي نو هغه وخت به نړیوال په ارامۍ سره پاتې شي او که نه نو د فلسطین مبارزین د خپلې خاورې د ازادولو په غرض په ډول ډول مبارزې کوي او د خپلې خاورې د ازادولو د پاره تر خپل ژونده تېر دي .

## د لویانو وینا وې

هغه بیوزله چې غوړه مالي او هغه بډای چې غرور نه لري پوه او ښه اخلاق لري .

(کنفوسیوس)

تجربه یو طبیب دی چې تر ناروغۍ وروسته د یې سره ملاقات ته راځي .

(اریبید)

تحمل او زغمل د زړورتیا او جسارت څرګندوی دی .

(ژورژ ساند)

# میرمنو تاسی حق لری مګر دهغه څخه بی خبره یاست!



تهیه کوونکی ملاله اڅکزی

ګرانو میرمنو تاسو ته دمخه نږدی چی د میرمنی لقب درکړه سی، د یوی پیغلی په نامه یادیږی خو کله چی د میړه کور ته ولاړه سی نو ورو سته میرمن بلل کیږی

چی دا د میرمنی لقب د هری یوی د خوښتنی سره برابر نه وی یعنی په دوی کی دا سی میرمنی شته چی په زور د میرمنی شوی وی او یا دا چه د خپل دلخوا ...ی سره ئی واده نه وی کړی. په دوام د وخت تو او کړ ښځوك د دوی ددی جبر سبب

سویږی او ښوك دی چی د دوی د اسلام او خدای ورکړی حق نه ښاغلی نیږدی. دا خلکت موږ ټول پیژنو څکه زموږ په ټولنه کی دداسی خلکو شمیر ډیر دی چی په

زوراو جبر خپله لور د با خورد پیسو په مقابل او یا د خپلو شخصی اغراضو تأمینولو په خاطر ور کوی. ود هغوی ژوند ته په سرسری نظر ګوری او د یوه حیوان غوندی ئی د حقوقو څخه محروموی. دا ټول خلک نه پوا زی دا چی

ددی احکامو په سبب محکوم بلکه د انسانیت او اجتماعی ژوند په سبب هم مسئول دی. نو هر کله چی میرمنو خپل دغه حق لاس ته راوړ د هغوی څخه په خپل انتقام اخلی. څکه

دا حق نه یوازی دا چی موږ ته اجتماعی قانون را کړی بدی بلکه الهی قانون ښځی ته د را تلونکی ژوند دملګری په انتخاب کی حق ورکړی دی څکه د ایجاب او قبول موضوع د خبرو په پوره ډول څرګندوی او د دغه حقیقت څخه هیڅوك

سترګی نسی پټولای خو بیا هم سر بیره پر دغه ټولو داسی پلرونه شته چی ددی موضوع څخه سترګی پټوی.

او همدغه رنګه د خپل اولادونو ورته هیڅ نه ښکاری

او دا فکر کوی چی ښځه فقط د همدی لپاره پیدا ده چی په خپل بخت پسی سی، او دنو څه غواړی. دا چی

دا به او س د خپل میړه په باره کی خبری کوی او

یا به هغه خوښوی دا ناممکنه ده. او هر چا ته چی موږ ورکړی ورموکړه دا ضافه خبره حق لری.

ولی اوس د حقیقت څخه لیری قضاوت کوو نکو میړه جامه نده چی که پر بدن راته سی او یا موی د ننګه خوښ نه سی نو به ئی بد له کړو او ته میړه هر موړ ځ

بدلیږی. نو پدی برخه کی د پلرونو او میندو جدی توجه غواړو تر څو چه دا و لادونو ئی دمشکلاتو او بد بختیو

سره مخامخ نه سی. او تاسو ته د سبا ورځی مسئولیت دا چی نه سی څکه دا و لاد د بد بختیو مسئول په هر وخت کی مور او پلار بلل کیږی.

## د پخلی برخه

### دماهی پخو لو ډول

تازه ماهیان څلور پاوه.

دوه بلو ډوډی میده ګی د ضرورت په اندازه.

دزیتون غوړی د ضرورت په اندازه.

مالګه د ضرورت په اندازه.

تور مرچ د خواهش په اندازه.

هګی څلور ردانی.

### د پخولو ډول یی:

اول ماهیان ښه پر مینځی او پوست ئی لیری کړی کهئی امکان درلو د زوزان ئی هم مینځی ایسته کړی مالګه او مرچ پرو موړی، هګی په یوه بیل لوښی کی ماتی کړی او ښه ئی سره وښوروی چی سپین او ژړ ئی سره ګډ سی پسله هغه ماهیان پکښی ولړی او د ډبلی ډوډی په میده ګی کی ووهی ور وسته ئی په سره کړی و غوړو کی سره کړی. غذا تیاره او د خوړ لو د پاره اماده ده.

د هیواد د مشهورو میرمنو د پیژندنې په لړ کې:

# میرمن ملاله څوک وه؟

ګرانو میرمنو! تاسې به د ملالې نوم ډیر اوریدلی وي ځکه چې په مرکز او ولایاتو کې

ددې نامتو ښځې د نامه په افتخار لوی او واړه مکتبونه پرانستل سوي دي. نو غواړم چې دا پښتنه میرمن تاسې ته معرفي کړم.

په ۱۲۹۷ هـ. ق کال د شعبان د میاشتې په اوولسمه د دوشنبې په ورځ د کندهار د میوند په دښت

د پښتنو زړورو ښځو، زړو او واړه د خپل هیواد او د خپلې آزادۍ د ژرلاسه کولو لپاره د قربانۍ ډګر ته حاضر شوي وه.

ټکنده غرمه وه، غازیان وږي تږي، ستړي ستومانه ښکاریدل. د میوند پر دښت او به

هم نه وي. نودی وخت چې د پښتنو لښکر له تندې ماته وکړي. د بلې خوا د دښمن لښکر ډیر قوي او په

داز دازو سلو سمبال وه په دې ترخ کښې د پښتنو پیرغچي هم ټپي سو چې دي وضعیت انګریزانو ته د یوې

سختې حملې جرأت ورکړ په همدې بحراني او حساسه لحظه کې یوه پښتنه پیغله میدان ته راغله او خپل

ملي بیرغ ئې په خپلو سرو منګولو د مځکې څخه پورته کړ او نارې ئې کړې.

خال به د یار په وینو کښېږدم چې شینکي باغ کې ګل ګلاب وشرموینه

که په میوند کې شهید نه سوې خدایږو لالیه بې ننګۍ له دې ساتینه

ددې پیغلې دغ لکه یو آسماني ږغ داسې ژ

چې د غازیانو وینې ئې په جوش راوستلې او ټولو د «الله اکبر» په ږغ نارې پر غلیم حمله وکړه او دښمنان ئې تار په تار کړل. په دې ډول ئې خپله خاوره د پردیو متجاوزینو د ناپاکه قدمو څخه پاکه کړه.

دا ننګیالۍ پیغله چې ددې نوم به د تل دپاره د پښتنو په تاریخ کې په زرین لیکه ثبت وي «ملاله» نومیده.



پښتنې غرور د دې پښتنې پیغلې له څیرې څخه له ورایه ښکاري

---

د جهان اراژ باړ:

# د ساه بخور لو ګټې

نو ... په هیواد کې متاسفانه خلک ډیری غوښې مصرفوي او داسې فکر کوي چې ټول غذائي مواد په غوښو کې موجود کیداي سي. حال دا چې دا حقیقت نلري. ځکه په دنیا کې داسې خلک ډیردي چې تل ساه به مصرفوي او د خپل عمر په اوږدو کې د غوښو څکه ئې نه ده کړې. سربیره پردې چې د پوره سلامتۍ څخه برخور دار دي عمرونه ئې هم اوږده او تل خوشحاله او فعاله وي.

غوښې خوړونکي انسانا[ن] له دي کبله چې د غـ[و]ښـ[و] د خـوړ لو سره ئـې عاد[ت] نیولی دي داسې فکر کوي چې پر ت[ـ] د حیوانا نو د غوښو څخه د انسانانو

نیرومندي او قدرت ناممکن [د]ي پداسې حال کې چې په زرو حتی په ملیونو خلک یا د مذ هبی اصول او د پیروي په اساس یا د طبی

اصــ ــولــو په علت او یا د فقر او قحطی په نسبت د غوښې د خوړلو څخه محروم دي.

دا خلک نه یوازې د ښه صحت خاوندان دي بلکه د دوی سلامتی تر هغو انسانانو لاز یاته ده چې خپل معده ئې د حیوانانو په هد یر[ه] تبدیله کړې یده.

هوا د غوښو ډیر مصرف ن[ه] یوا ځې دا چې د سلامتۍ دپاره لازم ندی بلکه مضر هم دي.

د غوښو خوړل سربیره پردې چې قوت نه اري بلکه د ضعف باعث هم ګرځي. ځکه غوښې د مختلفو ناروغیو مولد او ناروغی هم د ضعف مؤلد دي. په اروپا کې د جنګ په موده کې انګلیسان

ناچاره سول چې تر یوې لږې مودې پوري غوښې لږ مصرف کړي او یا ئې هیڅ مصرف نکړي ...

برخلاف د انګلیسانو دې عمل ن[ه] یوازې د دوی سلامتي مختل نکړ[ه] بلکه تر پخوا ئې وضعیت ښ[ه] شو.

# دغنمووزی

**٥ پښتنو جرگه**
**علامه برخه**

«درستم هیبت به پاشی | له زړه گی دمجستا نه
دگلو نو بوی به داشی | د بشلنګ له بیا پا نه

تر پخوابه دغو د مچکه | بو به لسه شی و دا نه
دهر ات به ساتند وی شی | چی ئی زړه چك لهعر فانه

ئیسا یاچی ئکهی هیره، بغدی هم دنیکه کوردی
پهنغر بو کی بل شوی، لمهی ی وارد آدین اوردی»





«هندو کش له خوا نسیم به | داشی بیا له کو هستانه
دبگرام د زړه غو ټی نه | سرو باسی له گربو انه

د ایکو نوپه ستا ینه | پهپه سره خولهشی خندانه
زړی پا ڼی د تار یخ به | و حلیپی له با میا نه

نوی در ز جنبش به داشی، دوطن په لوبو غرو کښی
سره غمی بهداو باسی، چی سا تلی ئی بهزړو کښی»



«د پلار و یاد کا ږو ته — یو په یو ور ته بیان کړی
د زړه پټ راز می دا ږو ته — په ښکاره ور ته بیان کړی

بیا به خپور د تیکه ګانو — د جلال نوی داستان کړی
چی ئی نه وینو په سترګو — دا په یاد هغه دوران کړی

دی آسمان ستوری لیدلی، د پښتون تیر شهامت دی
هر ځلیږی د وطن مو، دا ته یو درس د عبرت دی»



«شکر شکر خدایه! تا ته: — چی دی مشر دا پیدا کا
اوس د دی زلمی ته مل سی — خپله مرسته ور عطا کا

چی دا تیت اولس راغونډ کړی — له بېلتونه ئی جلا کا
په یوه آواز د دا پښا څی — یو له بله سره ملا کا

له ځراونه تر هر یه، له ږر تجه تر ځا بله
ټول ملت په یوه ځړه شی، له تغاره ترکابله»



# د نور محمدخان وینا

«له دی لوړی وینا ودو ستا — نور محمدخان کی سردار پور ته
په خوچی په مسکی ودو ودو — وی کتل د محمد اور ته

ویل: ای پښتون زلمیه! — لې غوږ هم کېږده دی وړور ته
مشرتوب دی مبارک سه — هم نیکمرغه سی دی کور ته

ستادتوری په هلادی، د انه سی تیاره ګوټونه
پر دښمن دی لاس براوسه برهالی دی وه تیږونه»



که ظاهر تر تا یم مشر — یا له نامی څیر اولس دی
که څنګه من می تر لاس لاندی — یا ملت زما په وس دی

خو څیر زورمی دی په لاس کی — دا قدرت دالره بس دی
مشرتوب نه غواړم هسکه — کشرتوب ته می هوس دی

نه چی پېښی داته ورانی شی، څه غبرګون به کړم په حشر
په عقلی می پر سترګو، ځه یم کشر ته ئی مشر



(نور بیا)




تهیه کوونکی : مړوند

## ناآشنا نغمه

دا څه آواز دی ؟
دچا نیا زدی ؟
پردې دساز دی
او که اعجاز دی ؟
نغمه شراب دی — یا زه کباب یم
زه شرابی یم — دا کبابي ده
خراب یم خراب یم
کباب کباب یم
دساقي لاس کښې
ګړوپه شراب یم
عمر تېر یږی — یارا تو ګوری
پیالی کږی یوړ ته — چه نه ودرېږی
کاروان روان دی
زړه می پرېشان دی
وېرزړه لی ژوندمی
په ما تاوان دی
نامراده عشقه — زه دی برباد کړم
زه دي برباد کړم — نامراده عشقه !!
(لائق )

## شباب

ما ته څې وکړه شباب چې لاړم لاړم
ماوی درا به نه شي بیا که ژاړم، ژاړم
د څوانی زمان مو نه په طلب نه شي
همیشه که ئې په د هر څواړم څواړم

## دفکر و نو انقلاب

دمیني په سودا کښې څه حساب لری که نه ؟
دسر په ورکې مه ملته څه جواب لری که نه ؟

دا کلك بې د حمه زړه و نه چې لاهو کړی ی څه ګټی
ګریوان کښې ژوړ دا و شکو د سیلاب لری که نه ؟

یو څه خودی چې دا ولی دی ژوړ ژوند ته بدلون
مغزو کې دفکرو نو انقلاب لری که نه ؟

دزړه و ینی می ډېر دی په کاسو کې ددرو ستر ګو
ای رنده او ابه ‌یل په دا شر اب لری که نه ؟

ملیاره ! دا بلبل می دزړه ګی پسی بیمارد ی
زما دپاره دمخ په څېر ګلاب لری که نه ؟

پس دی مستحق یم زه دحسن د خیرات
څه خیال په دی دنیا کې د ثواب لری که نه ؟

چې وخیژی اسمان ته پری دستورو دنیا ګی ته
آ . زو دچاد زلفو د تناب لری که نه ؟

(حافظه !) چې وی قول دزړه په و بنو باندی رنګه
دشعر په دفتر کی هسی باب لری که نه ؟

(نصر الله حافظ)

## مات کوډی

دګودر پر غاړه پروت ؤ مات کوډ ی
ویلی زه ورم دو غمنګی کلال جوړ کړی

دلته او بو کښې زه مات یو ه ملی کړم
بو ی پیغلی په او ږو ومه ر او ړ ی

❀❀ ❀

دجهان هره ذره کښې عشق عیاند ی
مات کوډ ی سره هم دعشق داستاندی

ډېر مین پادی ګودر دی بو څای شو ی
ډېر منګی دلته مات شوی لنډ بیا ن د ی
(الفت)

عبدالهادی (عطائی):

# کوچۍ پیغله

د سندېه غاړه
دوه به ګو لاړه
حیرانه پاته
اوښانګې لاړه
د پاو لوهاربې
پاس په اوربل ئې،

په غاړه ژانګې
کلیمه د اره

دغرو تو لورده
دبوه دنوره
حیاء کښې نغښتې
خندا سروره
دا سپینه پیغله،
څه ښه ښکاریږی،

د ګلاو نه
ځوانه او سپینه

دآسمان غېږ کې
سپوږمی راخیژی
د غره له پاسه
شپېلی غږیږی
دشپېلی سازته،
شپونکی چې وینی

پیغله نڅاکړی
مسته خنداکړی

کله چې ګوری
زماو خواته
بیاېو نظر کړی
خپلی ښکلا ته
نښتې او څغلی،
مسته ناری کړی،

دکړی دیه لورته
و خپلی مورته

ای کوچۍ پیغلی
ولی تو ربیږی
په تیښته تیښته
له ما پټیږی
وږره دی نه زده،
ښائی شرمیږی،

پلاردی پښتون دی
زما له قابی ته

په ورځو شپو کې
په غرو رغو کې
لیږدی سفر کړی
په شنو دښتو کې
هینه ئې باکه،
نه بی چل ول زده

ده و فادا ره
نه فر یبکا ره



# دژوند بې قرارۍ

ما دژوند بې قرارۍ کې قرار بیا موند
په څپو کې، د خزان مې بهار بیا موند
هغه ژړه چې تا تیارو کې ژوبل کړی
رڼا ورځ مې ئې د هجر په لار بیا موند
تا آزار اخیستو وادی خیستو خیر دی
په بدل بې ما دمینې بازار بیا موند
چې اشنا د راته اشنا خلک نااشنا کړل
غم مې نشته دی چې غم مې دیار بیا موند
چې د زړه دسوخته سرال کوم قبلیږی
په سینه کښې مې ور کوډی مزار بیا موند
(پیر ګوهر)

## دآشنائي اثر

له غمو سره مې هومره آشنائی شوه
چې اوس راته مشکله جدائی شوه
له ترخو ژړه نه صبر بېری چې عادت شی
دښمن هم سړی نه خوږ شی چې یاری شوه



تهيه کوونکی: احمد «راشد»

# ځوان څوك دى؟

ځوان هغه څوك دى چې د خپلې خاورې سره علاقه او دلچسپي ولري او د همدې خاورې د لوړېدو او پرمختګ عشق يې په سينه کې موجود وي، ځوان هغه څوك دى چې بشپړه بصيرت خپل محيط، قوم او د خلکو پر احوال ته وګوري او پوه شي چې ان ورځ موږ په کومو لارو او افتخاراتو سر بيره د نړۍ د هيوادونو څخه وروسته پاتې يو او هر کله چې د دغه درد احساس يې وکړ د نادرينو بخو لي يې تحريك شي او د خپل ځان سره عهد وکړي چې د خپل قوم او خپلې خاورې د پرمختګ او پيشرفت د پاره مردانه وار د

هر ډول موانعو په مقابل کې ودرېږم او خپل ځان، مال او ټول له هستي د همدې پاك مقصد د پاره پکار اچوم.

ځوان يو اجتماعي طبيب دى چې لومړى کوښښ کوي د هيواد په ټولو حياتي مجراوو کې نفوذ وکړي، د خپل هيواد او قوم د بدبختيو او امراضو علتونه او اسرار تشخيص کړي وروسته د عزم او ارادې په قوت او درايت د خاوندانو سره د مشورې په سبب د همدې امراضو په مقابل کې ګټوره دوا پيدا کې چې هم د غه کار د وينې په توګه سره هم وي او هم بايد د هيواد او ملت د ساتنې د پاره په بشپړه ثبات او نادرينو ب سره خپلې وينې په دغه لياره کې وښندي.

ځوان هغه څوك دى چې د نااميدۍ د چمن وی او وپوهيږي چې د دښمنانو دغه مفلج روح زموږ په عروقو او شرايينو کې تزريق کړي دى او په دې هم

بايد پوه شو پوهيږي چې نااميدي، نسبت مرګ ته په زرو مرتبې بده ده. پس ځوان هغه څوك دى چې په خپل ټول قدرت د يأس او نااميدۍ پر ضد مبارزه وکړي

او په مثبتو شواهدو او براهينو سره څرګاره کړي چې ز . . اوس هر څه ته حاضر يم او بيا هم زموږ دردونو ته دوا کيږي او وپوهيږي چې پر اړي او پوړي د ملت او حکومت

صميميت او د همدې مقصد د تامين د پاره موقع لاس ته راوړل د دردونو د علاج د پاره کافي او بس دي.

ځوان هغه څوك دى چې د ټولو بدبختيو او سياه روزيو په ليدلو سره بيا هم پوهيږي چې موږ د هغو نيکونو او د هغه ملت اولادونه او بچيان يو چې ډېر ځله يې په

خپلو حياتي مبارزو، بحراني وختو او هغه وختو کې چې مرګ او نيستي موږ او زموږ وطن تهديداوه مردانه وار درېدلي وه او د خپلو مړانو او خپلو د ماغو په توان يې

کوښښ کړى دى او د هغه ټول تفوق په سبب چې د دښمنانو په دوي باندې دراود، دښمن يې د منځه څخه يوړه او خپل افغانيت يې چې تاريخ په ذيات احترام سره

قيد کړي دى. ـ هر ګند کې، نو موږ هم بايد د يأس او نااميدۍ د دښمنان وأوسو په ډېرو غيرو خنو کې بايد خپل عقل او تدبير ونه دلاسه ورنه کړو او په فداکارۍ د يو سره خپل مقصد ترلاسه کو.

ځوان هغه څوك دى چې د خپلو نيکه ګانو افتخارات چې د تاريخ پاڼې يې ښايسته کړې دي، هېر ونه کي او بايد په خپل ذهن کې ځاى ورکړي او وپوهيږي چې د زمريو زامن د ګيدړې په شان په ضعف سره ژوند ونه کړي.

ځوان چې هر کله د خپل هيواد پسماني ويني نو

د خپل خداى او وجدان سره بايد عهد وکړي چې د خپل نامه او ملي شئوناتو او پاکې خاورې د ساتنې د پاره چې د پلرو او نيکو د معتبر کورونو د ښخيدو ځاى او دغه خاوره د ټولو ديني او ملي نواميسو ساتونکې ده

«پاته په ۳۲ مخ کې»

# په ژوندانه کې تجمل غوښتونکی مه اوسئ

ژموږ يو شمير خوېندې او ځوانان په دې عقيده دي چې تر هرې اندازې پورې چې په تجمل سره خپل ژوند تير کړي په ټولنه کې به يو ښه درقيمت او عزت حاصل کړي.

حتی ځينې داسې کسان شته چې غواړي او دو کسانو ته خپل ځان په ښکاره کړي، او هر کله چې کوم مجلس او ميلمستيا د سود او د اير لو د پاره بازار، دفتر يا کوم بل ځای ته ځي، او کوښښ يې دادی چې خپل ښيک او ډير شوخ لباس واغوندي چې د دوی دغه عمل نه يوازې دا چې د دوی عزت او اعتبار او وقار نه زياتوي بلکه په ځينو مجلسو کې د دوی عزت کموی او حيثيت يې راټيټوي.

ژموږ توصيه داسې کسانو ته دا ده چې دقيمتي لباسو نو داغوستلو ځخه ځان وژغوري ځکه دغه کار د يوه انسان حيثيت نه ورپروي، بلکه د انسان اجتماعي حيثيت په ساده غوښتلو کې څرګنديدای سي.

مثلاً يوه ميرمن کولای سي د ډيرې قيمتي ټوکر ځخه کالي جوړه کړي او دغه کالي ښايي دوره ځي د موډ سره برابر او هم ښه ښايست ولري.

بلې ژموږ توصيه ټولو ميرمنو ته دا ده په هغه صورت کې چې غواړي ښه ساسود کوونې ژوند، منظم شکل ځانته ولري او د کورنۍ اقتصاد بايد په تمامه معنی په نظر کې ولري شرافت مندانه او آبرومندو ژوند په ساده ګۍ کې وغواړي نه په تجمل کې.

# قامي ژوندون وګوري

ويښ شه ښاغلو ځلمو قامي ژوندون وګوري
ولې بې درده ګرځئ حال د پښتون وګوري

د خپل ټولواك په مخ کښې ځان په وحدت ويولی
ژړو نه روښانه هر وخت په محبت ويولی
داتفاق لاسونه دا لوی فضيلت ويولی
د سعادت فرشته په ښه الفت وېولی
د خپل پيشرفت د پاره قامي قانون وګوري
ويښ شئ ښاغلو ځلمو قامي ژوندون وګوري

هغه ځلمي غواړو ورو ژمونږ چې مليت پيژني
د خپل وطن په مينه قامي خدمت پيژني

د وظيفې په حب کښې ويښ جديت پيژني
حسن اخلاق په ځان کې د غه لعمت پيژني
د احساساتو په زور خپل تمدن وګوري
ويښ شئ ښاغلو ځلمو قامي ژوندون وګوري

په صداقت کښې دې تل فکر روښان ولري
ورك كې ناوړه دو د و نه عشق د عرفان ولري

په افتخار د مليت قوي وجدان ولري
وي په رښتني پښتون، غم د افغان ولري

داسې خواخوږي ژلميان شئ، او لوړ تون وګوري
ويښ شئ ښاغلو ځلمو قامي ژوندون وګوري

تقليد د وښې دنيا خپله ټولنه وکړي
ملي ثروت وګټي قامي پالنه وکړي
په سمه لار د ښېښتو ښه دا پلنه وکړي
د سعادت په لوری ټول الوتنه وکړي

شئ د صنعت استادان دا ښه لو ستون وګوري
ويښ شئ ښاغلو ځلمو قامي ژوندن وګوري
په اجتماع وي مين له ژړه نفرت ورکوي
د ځان ځانی خبری امادی ژړنت ور کوي
نه غواړي هغه هنر چې محبت ورکوي
لري په ځان اعتماد خوي د رشوت ورکوي
داد «درد من» ترانه دغه مضمون وګوري
ويښ شئ ښاغلو ځلمو قامي ژوندون وګوري
«درد من»



تهیه کوونکې: پیغله سکینه نوروزي

# ابوریحان البیروني

ژموږ د هېواد د غزنویانو د دورې ادبي او تاریخي ځلانده ستوری ابوریحان بیروني دی چې د ۳۶۲ هجري قمري کال د ذالحجې د میاشتې په دریمه نیټه په خوارزم کښې سترګې نړۍ ته خلاصې کړې دي. په هغه وخت کښې د غزنې پاستانی ښار چې د علمي او ادبي مهمو مرکزو څخه شمېرل کېده او د غزني سلطان علمي او ادبي شخصیتو ته خاصه توجه درلوده ابوریحان البیروني ته ئې بلنه ورکړه.

چې غزني ته ورشي او د سلطان محمود د مهربانۍ په سایه کې ژوند وکړي.

ابوریحان د ابوعلي سینا د معاصر ینو څخه و چې د ریاضي، نجوم، فلسفې او طبیعیاتو کښې ئې پوره مطالعه درلوده. کله چې سلطان محمود ډېر هند یرغل ونیو، د ابوریحان د پر ځمینه پر ابره سره چې هند ته سفر وکړي چې د دغو سفرو په لړ کې سانسکرت ژبه یې زده کړه. او د هند په باره کښې ئې یو کتاب ولیکه چې اوس هم د غه اثر په لوېدیځ او ختیځ کښې د استفادې وړ دي.

ابوریحان خپل زیات شمېر آثار په عربي تالیف کړي دي فقط یو اثر ئې په دري ژبه نوشته کړي دی چې د نجوم د علم په باره کښې دی. د هېښو تاریخ لیکوونکو د

قوله ابوریحان د خپل ژوند په اوږدو کې تر (۱۱۳) کتابه ډېر د بېلو بېلو موضوعاتو په باره کښې تالیف کړي دي چې زیاته برخه ئې له منځه تللې ده فقط یو محدود شمېر ئې سته. د دغه آثارو زیات شمېر د ژبې په بېلو بېلو ژبو ترجمه او نشر شوي دي. له دغې جملې څخه هغه آثار چې ابوریحان یادګار پرې ایښې د هند په باره کښې (۱۷) اثره دي.

د ۱۱۳ و که آثارو له جملې څخه یو ئې قانون د رهیئت بل جواهر شناسي، ارشاد در ستاره شناسي او د طبیعت عجائبو مېړي.

ابوریحان داسې پوه و چې د لوېدیځ او ختیځ لوی لیکوال حتی سیاستمداران د ده د علمي او ادبي خدمتو

او عمیقو معلوماتو یادونه کوي. له دې جملې څخه جواهر لال نهرو په خپل مشهور اثر «نګاهي به تاریخ جهان» کښې د ابوریحان د علمي خدمتو او زحمتو څخه یادونه کړې ده، د ده نقش د هند د معارف او علومو د «پېژندنې» په باب د قدر وړ بولي همدغه راز د ایران د ادبیاتو د تاریخ لیکوونکي انګلیسي اد وارد براون د ابوریحان د ژوند د شرح د کولو په لړ کې د معارف او پوهې په لار کښې د ده خدمتو ته ستاینه کړې ده. ټولو پوهانو او لیکوونکو هم په خپلو آثارو کښې د ده د فرهنګي خدمتو یادونه کړې ده. او زیات آثار ئې د استفادې په غرض ترجمه او نشر شوي دي.

ابوریحان د ۴٤۰ هجري کال د رجب د میاشتې په دوهمه نیټه په غزني کښې سترګې له دنیا څخه پټې کړې.



# ټوکې ټکالې

## په رستورانو کې

یوه میرمن او ښځه په رستوران کې ډوډۍ سره
خوړه چې ناڅاپه نارینه ټیټ شو او تر میز لاندې لې
په څه لوېدلو پیل وکړ، ښځې لې پوښتنه وکړه.
څه شی غواړې گرانه؟
یوه لوڅه غوښه د ځمکې لوېده.
مېرمنې ورته وویل: ډوډۍ وخوره،
میړه لې جواب ورکړ:
څنګه مېرمنې زما غاښونه پاتې شوي دي.

## کونړ او ناروغه

یو سپین ږیری چې په غوږو کوڼ و تصمیم لې ونیو
چې دیوه ناروغه دوست پوښتنې ته ولاړ شي. دخانه
سره لې وویل څرنګه چې به لې په خبرو پوه نه شم نو به څه وکړي

فکر کولو دوستانو دخانه سره فیصله وکړه چې لومړی
به ورته ووایم چې څه حال دې دی؟ دی حتماً وائي چې ښه
یم زه به ورته ووایم چې خدای (ج) لره دې شکر وي.

بیا به پوښتنه څنی کوم ان دی څښی خوړلی دی؟ یو څو ل
خواړه به یاد کړي، پسله هغه به زه ورته ووایم چې
نوش جان دې شه. په پای کښې به پوښتنه څنې وکړم

چې کم ډاکتر دی علاج کوي؟ دی به دیوه ډاکتر نوم
واخلی زه بایدورته ووایم چې ډیر ښه ډاکتر
دی. او په دی ډول برلاری رهی شو او ناروغه دوست ته
ورغی تر سلام وعلیک وروسته لې وویل:

حال دې څرنګه دی؟
ناروغه ورته وویل: ډیر درد د احساسولو څخه
نږدی دی چې مړ شم کاڼه سړی ورته وویل:
خدای (ج) لره دې شکر وي،

بیا لې پوښتنه وکړه.
ان دی څښی خوړلی دی؟
ناروغه وویل: زهر مار.

کاڼه په جواب کښې ورته وویل نوش جان دې شه. ⊛

## (دیوه ریاضي پوه لیک معشوقي ته)

ای دلوړې طول قطره، وای زما دزړه دشما
دایرې د څنې وړ څې داهیسې چې ستا متوازي قاعد
او دتنده اضلاع مې ولیدل په یوه زړه نه بلکه په شلو زړ

دهغه پر ارتفاع عاشق شوم. او اعتراف کوم چې ستاد ځګو
یزې «ساین» را ته گران دی. آرزو او غوښتنه مې دا د
چې ستا دزړه «کو ټنجنټ» ته ورسیږم گرانې :څ

گرد چې دتلو په وخت کښې ستاد پوټو دپیشوي قطا
څخه پورته کیږي. زما دستر گو د انفارنجه دی.

دا سه د بدن د مثلث وګردې داچکاره کړه تر څ

تابته کړم چې ددوو تور دو ضلعو د مربع سره مساوي دی...
خوښ لرم چې دخپل وجود «ساین» ستا د پزې په مقط
سطح کښې نثار کړم په دې شرط چې دوخت پایه (توان
ته ورته رسوي. نو راځو چې د یرو کسرو د لیکلو څخه ځان وغور
او فرمایشات دی دزړه په (د اڼ ټکال) کښې ځای یوم

هغه څوک چې د ژوند نړیا په په ستا دخولې دخاد چ
زاویې عاشق دی.

## (والترسکات څوک دی)

والترسکات دسکاټلنډ د ۱۸۰۰ او ۱۹ ایمې دلیکوالو نکو
اوشاعرانو څخه دی. چې په ۱۷۷۱ کال دسکاټلینډ
په یوه ښار کښې سترګې دنړۍ په مخ خلاصې کړي او
په ۱۸۳۲ کال لې سترګې له نړۍ څخه پټې کړې. دسکاټ
دروماتو نه دفرانسې او انگلستان دادبیاتو په ۱۹ پیړۍ کې
دروماتیک په دوره پاندې زیات تاثیر څند لی دی.
ډیر مشهور دوماني د «ډ ندان ایدینبورگ» په نام
جهاني شهرت لري.

---

⊛ ناروغه چې ددې جواب څخه ډیر عصبي شو ددې پوښتنې
په جواب کښې چې څوک دی علاج کوي وویل:
عزرائیل علیه السلام.

کاڼه سړی په خپل خیال جواب ورکړ:
ډیر ښه ډاکتر دی لاس لې نیکه دی ناروغه ډیر
عصبانیت له کبله بیهوښه شو او کوڼ هم په ډیره
خوشحالی خپل کورته رهی شو.

محترمو لوستونکو: د پورته مضمون څخه په عبرت
اخیستلو سره همیشه دخبرو کولو په ترڅ کښې او یا کم
وخت چې دچا د پوښتنو سره مخامخ کیږي باید دسوال
په مطابق جواب ورکړي تر څو چې د پوښتونکي قناعت
موحاصل کړې وي.

عکاس رام:                                                    د اراکوزیوال په قلم:

# د ښځو د لیسې یوزر و څلور سوه ځوانې نجونې

## ته څلویښت تنې ښوونکې درس وائي

### دغه لیسه په ۱۳۳۹ کال په ابتدائي سویه پرانستل شوه

په کنه هار کښې د نجونو او ملکا نو د لیسو په
ل کښې چه تر دوولسم ټولګي پورې درس وائي
...فراغت او کامیابۍ وروسته به یادګا بل او

...ګرهار په پوهنځو کښې د عالي زده کړې ودپاره
...امل شي او یا به د دوو کلو نو د پاره د کنه هار په
...لي دار المعلمین کښې د شامل شي او یا به هم دیره کال لپاره
...سلکي کورس تعقیب کړي په هم د ښځو د تجرنو لیسه ده.

ښځو د کنه هار هغه ننګیالي او وطندوسته میرمن
...ه چه د اعلیحضرت احمد شاه بابا په عصر کښې ئې

...وند کاوه او ددې د پښتني ننګ افسانې هرچا اورې پدلي
...و هغه کادیزچې لوی احمدشاه بابا دغي ستري پښتني ته

درس وائي او دغه تعلیمي مؤسسې په ۱۳٤۹ کال کښې د
پوهنې د انکشافي پروګرامونو په لړ کښې لیسې ته
ارتقاء کړې او اوس د دوولسم ټولګي شاګردانې هم لري

او د راتلونکي کال په جوزا کښې ئې د دوولسمې ټولګي
لومړۍ ډله فراغت حاصلوي.

د ښځو لیسه پو ابتدائي ښوونځی هم لري چې
سږ کال په هغه کښې یو سلو پنځه و یشت تنې داو و
شاګردانو په حیث په لومړي ټولګي کې شاملې شوي.

ددغې لیسې د ښوونکو او زده کوونکو د تعلیمي سویې
د لوړولو او علمي معلوماتو د پاره په لیسه کښې یوه کتابخانه
هم شته چې دوه زره څو که د پیلو پیلو شقو نو کتابو نه
لري او د پوهنې وزارت د پ.مجلس زرو
افغانیو له تخصیص او ایشاه ئې بشن د

مرستې پیسو هغه رانیول شوي او
دا کتابونه په پښتو، دري، انګلیسي او
المانی ژبو دي.

د پدې مرغه د غه ستره تعلیمي موسسه
تر اوسه پورې خپله ودانۍ نه لري او له دغه
کبله ځینې مشکلات ئې لاحل شوي نه دي چه
له هغو ځخه د عامې تطبیقاتو د پاره مجهز
لابراتوار دی خو په نظر کښې ده چه د
پوهنې هو زارت له خو ائي دغه

لیسې ته یاد منځه ولاړه شي او د الیسه په
هم لکه د زرغونې انا لیسه خپله و دانۍ
پیدا کړي.

ددغې لیسې نجونې بر نورو درسو نو سربیره د
تدبیر منزل چارې او ځینې لاسي صنایع او آشپزي
هم زده کوي او دا کار په عملي توګه سرته رسوي، او
د بدني روزنې د پاره تر اوسه پورې د باسکیټبال او
پنګ پانګ لوبو نه ئې جوړه شوي او ددغو ورزشونو ځخه
استفاده کوي.



د ښځو د لیسې آمره پیغله ګل غوټۍ طرزۍ
تدریسي هیأت او ځینې زده کوونکي

...دې د وطند وستی د عالي مفکورې له کبله په بوړه ئې
...کښې و باخښه او س هم شته او د ښځو کادیز په نامه یاد یږي
...و د ښځو قبر هم هلته پر یوه لوړه غونډۍ باندې دی.

د ښځو په لیسه کښې چه په ۱۳۳۹ کال کښې په
ابتدائي سو یه پرانستل شوه اوس یو زرو څلور سوه تنو
نجونو ته څلو یښت تنې د پیلو پیلو سو بو معلوماتې

د غه لیسه یو ویترین هم لري چې په هغه کښې د جغرافیې او بیالوژۍ د مضامینو ځینې مواد برابر او تهیه شوي دي چې د لیسې د شاګردانو سره په دغه برخه کښې مرسته کوي او د ا مواد هم په خپله شاګردانې برابروي .

لکه څرنګه چې په لیسو کښې تعامل دی د نجونو د قلمي سوبې او مطبوعاتي معلوماتو د پاره په دغه لیسه کښې او هم قلمي جریده هم شته چې نجونې ئې مضامین تهیه او په قلم لیکي او په دې ډول د لیکوالۍ، رسامۍ، خطاطۍ مشق او تمرین هم کوي .

د غه جریده په هفته کښې یو ځل په خپله د نجونو له خوا لیکل کیږي د هغه د ویلو څخه ټول نجونې ګټه اخلي او د غه جریده د ډېوه، مشعل، شفا یق، زلال، نوید، سرور فاخته ها او د عینو بانۍ په نامه یادیږي .



د عینو د لیسې د پنګ پانګ ځینې لوبغاړې د پنګ پانګ او ځینې نورو سپورټي سامانو سره

د عینو د نجونو په لیسه کښې د څارنجونو تشکل هم شته چې نجونې په هغه کښې شامل چې په اجتماعي او خیریه چارو کښې برخه اخلي .

---

❁ د فابریکو او ادارو د لوبو او غونډو سالونونو له پاره ه مناسب دی

ذکر شوي ژړانو ز کولای سي د ماشین د کار او د هټو د ږغونو د انطباق سره سم خپل آواز لوړ او یا کښته کړي.

د عبید الله (یوسفي) ژباړه:

# موسیقي د ناروغانو

## و اعصابو ته تسکین او کاریګرو ته د زیات کار قوت بخښي

د موسیقۍ په وسیله سره نو له کارونه ښه او غوره توګه سر ته رسیږي د ادارا ن
د راډیو د یوې خپرونې د پروګرام هغه نوم دی چې هره ورځ په ټاکلي وخت خپریږي. خو ان و د غ موضوع په هکله د ی ځای باندې نه ختمیږي ولی چې په ژیاتره مطبعو، روغتونو نو، ادارو او فابریکو کې موسیقي د کار جز ګڼل سویده .

په مطبعه، او روغتون کې موسقي د اعصابو د تسکین سبب ده خو په فابریکو او ادارو کې د کار پر خوږ والی باندې زیات والی کوي .

د عینو د ا م پروړانو په عقیده په تیاره کې موسقۍ ږغول لحقادو او د شدود ژیاتوالي سره لازم کومک کوي چې د هغه ی امر د ورځني زیاتوالي له کبله د موسیقۍ مناسب پروګرامونه د موسو او همد غه رنګه د خلکو اپاره ورځني اړه تیا ګڼل سویده یعنی تردې حده چې د فیډرالي المان نوی موسسې د تلیفون په ذریعه د خلکو د غوښتني او خوښې سره سم پروګرامونه لري او د دوی پېژندونکو استادانو او زده کوونکو دقیم له خوا د غه پروګرامونه جوړیږي هغه پدې ترتیب دي چې هر څوک د تیلیفون په واسطه د خپل روحي فشار او نورو د نورو احوالاتو په باب معلومات ورکوي خو په جواب کې ئې د هغه د تیلیفون په وسیله د موسیق داسې پروګرامونه جوړ او اوروبل کیږي چ په هغه وخت کې ئې خاص د اعصابو د تسکین او کار د روحیې سره برابر وي .

په عمومي توګه زیات زیل او بم غږ مناسب نه دي او اصلاً سم په تیلفون کې د غم داوړونکو آوازو او د خپرولو څخه ږغ ورته کیږي دا څکه د ا رنګه غم داوړونکي آوازو نه د مقابل لوری حواس نور هم ورو یجاړه کوي .

پدې وختونو کې د موسقۍ د ژ تر اتو د (د موسقي نوی آله) نوی ډولونه و بازار ته عرضه سوي خو نوموړی ژ تر انو د ونه، تیره بیا

دغلام رسول ایوبزي په قلم:

# دشاولی کوټ ولسوالي

اولسوالي چې اوسنی مرکز ئې دکندهار دښار
بخ په څلویښت کیلو متره کښې دارغند او
الي سیمې ته پرته ده پخوا د «دهلې» په نامه

خو په ۱۳۴٤ کال کښې دشاه ولی کوټ نوم
بدل شو .

خوس او لوی کلي :

شاه ولی کوټ په ولسوالی کښې شل زره تنه
اوسي او پنځه زره تنه کوچیان هم لري ، دپښتون
په قبیرو ته لکه پوپلزي ، الکوزي ، بارکزي ،

ان ، بابړان ، اڅکزي ، توخي اوسلیمان خیل
اوسي او کوچیان ئې په خټه تره کي دي .

ځي ولسوالي زیاتره اوسیدونکي پوپلزي

ي کلي ئې اویان ، بودي ، چنارتو ، باغتو ،
کندلان ، ده بوچي او سوزني دي .

ار غنداو بند :

کال له دمخه ددهلې په سیمه کښې چې دشاه ولی کوټ
هم په هغه ځای کښې ؤ دوچکالي او وچو بې خځه
ارد او بې زراعتي سیمې دساتنې له کبله دحکومت

دامریکي دموریسن کنوډسن دتعمیراتي کمپنۍ
طه او بود ذخیری بند جوړ شو چې په دغه ټوله
کښې ئې دبوی خوا دکندهار دمیوی باغونه

و څخه وساتل او دبلې خوا دظاهر شاهي کانال
ته دراتلو سره زیاتي وچې اوبې اوبو مځکي تر
دی لاندی راغلي او دکندهار دڅيل کوه په سیمه
او بو بریښنا هم منځ ته راغله .

لسوالۍ مرکز داو بود بند له کبله اوسني ځای ته
شوه او ځکه چې دغه ځای ددغې ولسوالی مرکز
ته لري نو ښائي چې مرکز ئې بېل داسي ځای ته
چې مرکزیت ولري :

رنه او فلاحت .

دغه ولسوالي کښې که څه هم دارغنداو داو بو

دذخیري بند جوړ شوی دی او ځینی کلي ئې ددغه
رود څخه اوبه‌ی خوړیا ره سیمه او کلي ئې کاریزونه
لري او هر کله چې کال آباد او په ژمی کښې زیاتي
واوري او په پسرلی کښې ډیر بارانو نه‌وشي نو کلي ئې
آباد او زیات حاصلات ورکوي .

غنم ، جواري ، اوربشی ، او په ځینو سیمو کښې پنبه
او شالي هم پکښې کرل کیږي .

میوی ئې زردالو ، انار ، مڼې ، بادام او انګر دي
او هر کله چې کال آباد او کاریزونه زیاتي اوبه ولري
نو دهندوانې او خټکي پالیزونه هم دسیمې خلکو
کښېږي .

هغه کسان چې خپله مځکه نه لري او دبل چا مځکه
وکري نو هغه ته پنځمه برخه دحاصلاتو او باغوانی ور
کوله کیږي .

پرته له اوی غنمو څخه للمي غنم هم پکښې
کیږي .

ددغه ولسوالي ځینې هغه برخې چې زیاتي واوري
پکښې اوري سړې سیمې او هغه چې باران پکښې کیږي
تودې سیمې دي دسړو سیمو دپوهنې دزده کړونکو

عمومي رخصتي په ژمي او دتودو سیمو رخصتي په دوبي
کښې وي .

دیخوا او وارینو سیمو غرونه ئې آباد او ونې لري
چې زیاتره ئې دبادامو ، شنو او داسې نورې ونې دي ،

دغره بادام ترنورو بادامو واړه او ترخه دي ، خو خلکو
ئې دخرڅلاو دپاره دکندهار ښار ته راوړي .

مالداري :

کوچیان او نور خلک ئې څاروی لکه اوښان ،
پسونه ، اوزې ساتي او له دغې لارې څخه خپله ګذاره
کوي او اوښان اوس هم دکلیو په منځ کښې دنقلیه
وسیلې په حیث تګ راتګ لري .

دمالدارانو ژوندانه او ښانو دګرانۍ پسونو دوړې
دمیږو دغوړیو او پسونو دخرڅلاو دلارې نا مبنیږي .

وحشي ځناور: په غرونو کښې ئې پړانګان لېوان، ايږان، شکنبيان، ګيدړې او چغالان شته، په باغونو کښې ئې، بلبل بلبلکه، مينا، ګيږ که، ملاچرګک، کوترې داز دانګچو غکي او داسې نور. خو په غر ونو او

شيلو کښې ئې زرکې او سيسې موندل کيږي د غرونو ځناور ئې غرڅه او په دښتو کښې ئې هوسې شته.

## تاريخي او روحاني شخصيتو نه:

د اعليحضرت احمدشاه بابا لوى وزير شاه ولي خان په خټه باميزى پوپلزى د دغې ولسوالۍ او د افغانستان په تاريخ کښې ئې لوى رول لوبولى دى له همدغه

کبله دغه ولسوالي د وزير شاه ولي خان په نوم هم بلل شوې.

په اويان کښې د با باصاحب، بابو ټيکه او ملانصرو ټيکه مقبرې شته او د سيمې خلک ئې زيارت ته ورځي او عقيده ورته لري.

## لاسي چارې:

د ځينو برخو په خلکو کې ئې د کرباس، تغر، سترخوان، او ايښکي او داسې نور اوبدلو دو اج لري.

## د و د و نه:

د ښځو او د لوړ د نورو ګاونډو الي سيمو او ولسو اليو په څير لوړ او تر يو لکه افغانيو پورې د سيږي او د ځار يا تو بر خلاف نا وي د وروځي له غوا د ژدوم کره بيول کيږي.

د مړي په پا تنا کښې هم څو ګ چې وس لري ز يا تې پيسې په ختمه او خيرات خرڅيږي.

## د غره ښکار:

د کندهار د غره ښکار زياتره د دغې ولسوالۍ د باغ په غره کښې کيږي او د کندهار ښار يان په دغه غره کښې ښکار دي.

## د ښوونځيو شمير:

د شاولي کوټ د ولسوالۍ په مرکز کښې يو منځنى ښوونځى ستهچې د وزير شاولي خان په نامه ياديږي او ۱۳۷ تنه زده کوونکي لري، دوه بابه د دې معلمه

ښوونځي ئې يو په کندلان او بل په کجوړ کې او هغه بغې سيمې دى او يو باب دوه معلمه ښوونځ چنارتو په سيمه سيمه کې لري او شپږ کليوالي يو معلمه ښوونځي د چنار، وچ باغتو، شين غوږي او اويان په سيمواو دوه بابه ئې په نور د سيمو پورې او سوځلي شته.

# لئونارد د وينچي

لئونارد د وينچي د ايټاليا نکي هنرمند او رسام د يوه بڼ اى سي ى (ناظرو ع) زوى ؤ چې ۱٤٥۲ کال ل فلورانس ته نژدې د ينچي کې دنيا ته راغلى ځر ئکه چې د پلار ما لي قدرت ئې زيات وو نو لئونارد د مشهور مجسمه جوړ وونکي (آندريا ورو چيو) شاګرد شو او په ۱٤۸۳ کال ميلان ته ولاړ هلته ئې د (د وک لوکو بچر اسفور زا) د چارو زياتې سرپرستي پر غاړه واخسته.

دى له بوى خوا په ۱۵۰۲ کال د (سزار بورژيا) خدمت ولاړ او له بلې خوا د هغه د مهندس او معمار په صفت ئې ايټاليا ز يا تر و ښار و نو ته سفر و کړ او فلورانس ته بير ته را نګ او د وستهئې ځلور کاله وخت ئې پر خپل يو بهترين او ارزښتو نکي اثر باندې تير کړ چې دغه اثر (مونا ليزا) څيره وه چې په (لبخندژوکوند) سره مشهور او په ځا ګه و پلای سو هغه د جهان د ښکلو ځو نکې تابلو ګا نو له ډلي څخه شمير ل کيږي دغه اثر ۱۹۱۱ کال د پاريس د (لوور) د موزيم څخه غلا سو ددې غلا پيښي عجبه شور ما شور جوړ کړ.

غل يو تن ايټالوي وو چې ويل ئې له يوى خوا دوستي حس او له بلې خوا ايټا لوي هنري آثارو زماز باتي مينې او علاقې زه ودې ته وګمارلم چې ډول کار وکړم (لبخندژوکوند) نو هم غل پيدا (لوور) ته راوړل شو او په ۱۹٦۳ کال په امريکا کې د نما يش لپاره کښېښودل سو. (لئونارد) هر کاره او هر هنر و سړى ؤ په نقاشي ، علم ، طب ، حجار ى ، معمار ى ، مهند سي کوالي او موسيقى کې ئې خپل نبوغ واو ورساوه.

دغه عا ليقدره استاد تل پر دې فکر ووچې يو د ماشين جوړ کې چې د هغه په وسيله والوزي.

د ښير ارزښت نا که آثار و له جملې څخه ئې يو (آخرين شام) دى چې په ۱٤۹۸ کال ئې د (سا نتاماريا) د عبادت گا پر د يوال باندې رسم کړى دى.

د ده رسمو نه د ژ را فت او لطافت له نقطې نظره (د رفائل) د رسمو سره شباهت لري ده په ۱۵۱۹ کال ٦۷ کلو نو په عمر له دې جهان څخه ستر ګي پټې کړې.

دارغساني ژباړه:

د عبدالمنان امین قلم:

# د حاجي محمد اعظم د کور د مالو نو د غلو له جملې څخه څلور تنه لاس ته

## راغلي او دوو تنو یې په خپل جرم شرعاً اعتراف کړی دی

د روان کال د ثور د میاشتې
دوهمه نیټه د کندهار د ښار د
... ناحیې او سیدونکي عبدالله
حاجي محمد اعظم زوی پولیسو
خبر ورکړ چې په غله ورځ د سهار
... څلو د نیمو بجو په شاوخوا غلګ
دوی په کور ننوتل او څیزونه

وروسته له هغه چې پولیس د
حاجي محمد اعظم کور ته ورغله
حاجي محمد اعظم میرمن او لور

... د غلو د حملې په نسبت قانع شوي
وه .

وروسته له څه وخته حاجي
محمد اعظم په روغتون کې مړ
شو .

چې د هغه له کوره ۷۳ زره افغانۍ
سل دانې د طلا پهلوي .
د طلا څلور جوړې کړې
یوه دانه سیراکوله دانه یو .
یو څکاره قوبه .
څلور تختې هراتي غالیان
یوه دانه بچه کاره دوربین .
د دریشۍ د پاره ۲۰ توپه کشمیره
څلور تختې کوچنۍ غالیچې .
دوې دانې لنګۍ .
مخملي جای نماز ۴ تختې .
د پښمو د سر شال ۱۱ تختې .
د طلا غلور دانې امیلونه .
د طلا شل دانې انګشترې .
یو جوړه غړ .
یو میل شین ګلي تفنګچه
۴ تختې دوجانې کمبلې .
او د سپینو زرو یوه جوړه قوبه .
د غلا د څانګې آمر چاغلي
کردیزي ووېل: پولیس د غلو
د نیولو او لاس ته راوړلو د پاره
په فعالیت بوخت ترڅو چې د د



رمضان غل

نور علي غل

او نه یې غلا او ونښتیدل .

د کندهار د ولایت د پولیسو
... مامور د غلا د څانګې آمر
... علي عبدالغني کردیزي چې
... دوسیې مستنطق دی ووېل:

میرمن وزیره او د حاجي
محمد اعظم لور صدیقه چې قانع
شوي وه د معاینو په غرض روغتون
ته ورغلل شوي او قضیه تر تحقیق
لاندې ونیول شول .
چاغلي کردیزي ووېل: چې د
حاجي محمد اعظم زوی ویلي دي

میزان په شلمه نیټه ئی د غلو هویت
پیدا او د دوی د لاس ته راوړلو په
اقداماتو ئی شروع وکړه.

د دوی د غلو د ګروپ له
جملې څخه رمضان د لعل محمد زوی
نورعلی د شیرعلی زوی د ده خواجه
اوسیدونکو، عبدالقیوم د پاینده
محمد زوی د ننګرهار د لسوالی د غنی
قلعه چې اوسیدونکی، او د میوند
د مرآبخور د اوسیدونکی نظر محمد
د پیا ئمحمد زوی لاس ته راغلی دی
پولیسو زیاته کړه چې د دوی
له جملې څخه عبدالقیوم او نورعلی
په محکمه کی پخپل عمل او د بیخی
په ټولو خصوصیاتو اقرار کړی دی
او د پاتې کسانو تحقیقات اوس
دوام لری.

د غلا د څانګی آمر وویل: چې
تر اوسه ۳۲ قلمه غلا شوی سامان
او لوازم هم د نظر محمد له کوره
څخه لاس ته راغلی دی.
د غلا د څانګی آمر وویل: دا
مالونه چې لاس ته راغلی دی د
څښتنو ژیوړ او نور شیان دی او
نغدې پیسې په دغو شیانو کی لګیدلې.
د محمد اعظم د کورنی یوه
غړی د مطلوع خبریال ته د یوی پوښتنی
په جواب ده په کورکی وویل:
چې پیدا شوی مالونه د غلا شوی
مالونو له جملې څخه دي او موږ
هیله کوو چې نور مالونه هم
پیدا شي.

د حاجی محمد اعظم د کورنی
یوه تن چې پخپله ستر ګه او لاسونو
کی د غلو له خوا د ناوړه اثراتو
علامی تر اوسه هم لیدل کیدی د
غلو له دوبی څخه چې د دوی د مال
او سر د تاوان سبب ګرزیدلی
شنده وکړه.

رمضان د یوی غلا په موضوع ...
کی پخوا هم د کندهار په محبس
کی پنځه کاله او عبدالقیوم ...
غلا په موضوع د کندهار په بندی
خانی کی ۱۶ کاله او نورعلی ۲۷ ...
کاله بند تیر کړی دی.
رمضان د ۱۳۵۰ کال د سنبلې
په میاشت او نورعلی په ۱۳۴۸



## عبدالقیوم غل

د امنیې قوماندانی د پولیسو
سرمامودیت د غلا د څانګی آمر
د موضوع له دوسیې څخه وویل:
چې پدی پیښه کی د دا کتر د نظر یې
سره سم د محمد اعظم لور صدیقی
پخپله او ښه، بازو او د محمد اعظم
میرمن وزیرو پخپله ستر ګه او ښه
او حلقوم کی د دو او دو ساتنې
مترو په ژور وارلی ژخمو نه
درلودل.
پخپله محمد اعظم د چړی په
واسطه د ددی او غلو د ساتنې مترو
په ژور دوالی چې تر هډو کو پوری
رسیدلی ژخمونه درلود.
پولیسو د غلو د هویت په باره
کی داسی وویل: چې رمضان د زابل
د ولایت د جلدک د ولسوالی او
عبدالقیوم د کندهار د دچار دی.

## نظر محمد غل

کال کی له بندی خانی څخه خوشې
شوی دی.
څاغلی ګردیزی زیاته کړه
چې مالونه د میوند د ولسوالی
اوسیدونکی نظر محمد له خوا
پولیسو ته سپارل شوی دی او
حاجی محمد اعظم پاتې شوی
کسانو خپل مالونه لیدلی او د
هغو د نښانی سره سم چې د دوی
پولیس ته ویلی دی خپل مالونه ئې
هم پیژندلی دی.
د غلا د څانګی آمر وویل: د
موضوع اوس هم تر تحقیق لاندې
ده او د نغدو پیسو په باب غلو
تر اوسه په یوه کمه اندازه غلا
شوو پیسو اعتراف کړی دی.
او د نورو شیانو په باب د غلو
اعتراف د مال د خاوندانو د ادعا سره
سم دی.

پښتوکوټکی م٠چار باغی

# لومړی ځل طبابت کله او چیرې منځ ته راغی؟

د ځمکې پرمخ باندې د انسان د منځ ته راتلو سره سم د طبابت او تداوي موضوع هم منځ ته راغله.

پنځه زره کاله تر میلاد د مخه مرضو ته او ناروغی تر ډیرې مطالعې لاندې نیولي او په مختلفو وسیلو سره به ئې د هغه په تداوي لاس پورې کاوه د بشر د پیدایښت په لومړیو ختو کې به ئې ناروغه پر ځمکه باندې پریښوتی او د دم وجادو او داسې نورو مخصوصو حرکاتو په وسیله سره به ئې د ناروغه تداوي کوله په هره اندازه چې په ځمکې پر مخ د انسانانو د اجتماعي ژوند شپې اوږدې تیریدلې په هغه اندازه به انسانان د ناروغی د علاج او تداوي په فکر کې لا هو کیدل.

حتی د تاریخي اسناد و له مخې (۲۵۰۰) کاله تر میلاد د مخه د انسانانو او حیوانانو ناروغی معلومه شوې ده د دغه موضوع د هغو اسنادو له رویه اثبات شوې کوم چې د پخواني مصریانو څخه پاته شوي دي. د همدغه تاریخي اسنادو په اساس تر میلاد (۲۰۰۰) د مخه کواله د هډوکو د ماتیدو د بند و د جلا کیدو د پښو په ځپوانو مونږ ته په باب مطالعه شوې دي همدا رنګه سر بیره پر پخوانې مصر یانو پېړ د یا نو آسوریانو، هندیانو او چینایانو هم په طبابت کې لاس درلود.

پخواني یونانیان د طب بنسټ ایښوونکي بللای شو داځکه چې هغوی وه چې په عصري شکل ئې د طبابت اساس کېښېښود.

هیپوکرات د طب پلار و بللی شي چې د څلور ګونې اخلاط په ګډیدل چې عبارت دي له وینې، بلغم، صفرا او سودا څخه د صحت د پوره والي سبب کیږي همدا رنګه ئې داهم ویلي دي چې که پوره تنې څلور شیان یو له بله سره په ګډه نه سي نو ناروغي پیښوي.

جالینوس[*] حکیم هم چې د میلاد په اوله پېړۍ کې ئې ژوند کاوه د هغه عصر د طبیبانو له ډلې څخه واو و طبابت ته ئې علمي رنګ ورکړی دی د دې لوی حکیم نظریاتو د انسان تر دوو ړي او حتی تر هغه وروسته لا هم مهم رول درلود.

بلخی ابن سینا زموږ د هیواد د لرغونی او باستاني بلخ د ځمکې دانشمند او لوی فیلسوف د هغه پوهانو له ډلې څخه و چې د طب په باره کې ئې د لومړي ځل لپاره په علمي تجربو او مشاهدو لاس پورې کړی او د طب لارښود او په برخه کې ئې مهم آثار و لیکل چې د دغو آثارو له جملې څخه ئې یو کتاب د (القانون و اشفاء) په نامه یادیږي. دغه کتاب د خپل هغه اهمیت په لحاظ چې د هغه وخت د طبي موسسو لپاره ئې درلود د څو پېړیو لپاره به آسیا او اروپا کې استفاده د هغې نه کیدل خو په (۱۶) میلادي پېړۍ کې د طبي نظریاتو په منځ کې زیات تغیر راغی.

په دغه پېړۍ کې نوي او تازه قوانین وضع او د تجربې له مخې ئې د ناروغیو په تحقیق لاس پورې کاوه نوي طبیبان پیدا شوه او د لومړي ځل لپاره علم التشریح (اناتومي) د انساجو پیژندل (هستالوژي) منځ ته راغله او بشر کراد کراد د بدن په جزئیاتو باندې وپوهیدی او د هغه د باره دوای کشف شول ډول ډول واکسینونه منځ ته راوتل شول او لوی لوی جراحي عملیاتو باندې لاس پورې شو.

بالاخره د (۱۸) میلادي پېړۍ په منځ کې د طب لپاره د فزیک او کیمیا څخه استفاده وشوه ورو ورو د ناروغیو د تشخیص لپاره ډول ډول سامانونه جوړ او د استفادې وړ وګرځیده چې له نیکه مرغه اوس ویښو د هر ډول ناروغیو تداوي او د جراحي د هر خطرناک عملیاتو له داوسني ډاکترانو له خوا په بریالي ډول سرته رسیږي.

د (۳۴ مخ پاته)

# د فلسطین د موقتي ...

خو انور السادات د فلسطین د مبارزینو په فعالیتو کې د دغه ډول مداخلې څخه چې اوس یې پخپله غواړي دادی د حقوقو څخه دفاع وکړي ډډه وکړه.

سختي هغه وخت منځ ته راغله چې عربي حلقو په دغه برخه کښې د عربو مشکل تشخیص نه کړ. او دغه موضوع دوی ته نه وه څرگنده چې عرب په اوسنیو جریانو کې چې خپل ځان د نورو د مرستو خصوصاً د عربي هیوادو څخه د خپلو حقوقو د تامینولو په برخه کې مایوسه ولیدل په څه ډول باید د فلسطین د آزادي غوښتونکو فعالیتو په مقابل کې ودریږي. او پخپله دوی د موجوده تکلیف او فشار د آوازې په نه لوړیدو کې ددوی سره برخه واخلي.

خو په هر صورت د دغه جریان په ترڅ کې په عربي حلقو کې یوې موضوع ډېر فکرونه خراب او هغه داوه چې ولې د عربي هیوادو د مشرانو خصوصاً انور السادات د خپل قدرت څخه کار وانه خیستی او فلسطیني مبارزین ئې د اسرائیلو د ورزشکارانو په مقابل کې آرامۍ ته راونه بلل، او په دې ډول یې ددوی د تلفیدو مخنیوی ونه کړ په داسې حال کې چې وروسته ټولو ته معلومه سوه چې مبارزینو د خپل دغه اقدام څخه ددوی د وژلو خیال نه درلود بلکې غوښتل یې په دغه سبب سره د اسرائیلو څخه د فلسطینیانو د آزادیدو په غرض گټه واخلي.

بیا هم د لوبې کونکو تلفیدل د مبارزینو د اقداماتو په سبب ونه سوه بلکه د لویدیځ المان امنیتي قواؤ ته د اسرائیلو د مشاورینو غلطو مشورو دغه پیښه منځ ته راوړل.

د مصر مشرانو د دغو جریانو په کتلو سره دغه نتیجه لاس ته راوړل چې عربي حلقي د هغې موضوع څخه آزرده سوي دي چې د مصر عربي جمهوریت د هغه سره هیڅ ارتباط نه لري.

د دغو جریانو په لیدلو او د دغه حقیقت په درک کیدو سره ؤ چې سادات پیشنهاد وکړ چې د فلسطین د خلکو د پاره دې یو موقتي حکومت جوړ سي. او دغه بې وطنه حکومت دې په قاهره کښې په کار شروع وکي. ځکه د دغه حکومت په تشکیلیدو سره نه یوازې د فلسطین سرگردانه خلک د خپلو چارو د تنظیم او لارښودني د پاره یو مسئول ځای پیدا کوي بلکه څرنگه چې د مبارزینو د فعالیت ساحه په عربي هیوادو باندې د اسرائیلو د فشار د دوام او په عربي هیوادو باندې د اسرائیلو د تسلط په نسبت ورځ په ورځ پراختیا پیدا کوي. ځکه د ضرورت په وخت کې علاقه مند هیوادونه او حلقې کولای سي د مصر عربي جمهوریت د مشرتوب په عوض کې د فلسطین د خلکو موقتي حکومت ته مراجعه وکي. او د دغه حکومت سره د علاقې وړ مسئلې او موضوعگانې حل او فصل کړي.

دغه حرکت به درې گټې ولري:

اوله دا چې وروسته تر دې به عربي هیوادونه په ظاهره د فلسطین په خلکو پورې د مربوطو مسئلو د غیر ضروري مراجعو څخه فارغه سي او د بلې خوا څخه هر څوک پوهیږي د فلسطین په موضوع پورې د مربوطو مسئلو د حل د پاره یو ځای ته مراجعه وکړي د دغې موضوع دریمه گټه به د فلسطین د سرگردانه خلکو د پاره دا وي چې وروسته تر دې د فلسطین د مبارزینو د بیلو بیلو جبهو د یووالي د تامین په غرض به ددوی ټول فعالیتو ته د یوې مرجع څخه لار ښودل کیږي چې دغه موضوع پخپله د اسرائیلو د دوام داره تسلط په مقابل کې د فلسطین د یو ملي منظم قدرت په حیث یو مهم گام بلل کیږي.

قاهره د هغه وخت راهیسې چې په دغه ښار کې د الجزایر موقتي حکومت هم خپل فعالیت کاوه په دغه باب د پخوا زمانې څخه اعتبار لري.

ه د غه ځای کې د فلسطین د موقتي حکومت د منظورو
لیتونو د مخکې تګ امکانات موجود دي. ځکه د غه
ي د سیاسي تشبثاتو په سیمه کې همیشه د عربي هیوادو

. لنو او بین المللي شخصیتونو د تګ او راتګ ځای
. او د فلسطین موقتي حکومت کولای سي د غه ځای

ه د هر ځای او د هر چا سره چې وغواړي تماس ونیسي
فلسطین د خلکو د پاره مؤثرات خدمت وکړي.

د فلسطین د موقتي حکومت جوړېدل یوه بله
په بین المللي برخه کې هم لري او هغه دا ده چې
ي ترفعالیت وروسته بین المللي ټولنو ته مراجعه
لای سي او ډېر زیات امکان لري چې د غه هیوادونه

سطین د خلکو په نماینده ګۍ په یو شمیر کنفرانسو
لکه د بې طرفو هیوادو په ټولنو کې برخه واخلي
د غو ټولنو کې رسمي او قانوني غړیتوب حاصل
.

د فلسطین د خلکو د موقتي حکومت د جوړېدو
ب چې یو مرکزاو ... حکومت به ولري او هغه به په
کې وي، د اسرائیلو د دفاع وزیر د هغه د منلو څخه

کې ی ده. ځکه اسرائیل همیشه
غوښتونوته درسیدو د پاره هغه موقف تعقیبوي

عربو په اتفاق او په ټول سوو برخو کې د دوي
ل زیات دوام وکړي. ځکه اوس د دې خبري استدلال
دې چې د فلسطین د خلکو ځای عمان دی څو په دی

ت د د غه حقیقت څخه ستر ګې پټې کې چې د فلسطین
ې د خپله خاوري څخه تښتیدلي و تلي او همدا اوس
یان خپله مځکه د خپل ژوندانه د پاره نه تیاروي.

په عین حال کې د همدغو ځر ګندونو سره سره اسرائیل
ډ ي د اردن او فلسطین د خلکو ترمنځ اختلافونه
کشالي منځ ته را وړي او د وي یو د بله سره واچوي
اما هغه څه چې د موقتي حکومت د جوړېدو په نظر

نیو لو سره د تامل قابل دي دادي چې د فلسطین
ادي د موسسي اجرائیوي کمیټه د میزان د میاشتي

ممه نیټه په د غه باب د سادات پیشنهاد رد کړ. او په
باب بې رسمي تردید د فلسطین د ملي شورا تصمیم

ته چې د قوس په میاشت کې بې غونډه کېږي، معطل کړ.
که څه هم کولای سو چې د د غه عکس العمل په مقابل

کې تامل وکو خو د غه هیلي په ما یون کې دي چې ښایي
ترهغه وخته پوري عربي حلقې په د غه باب زیات غور

او څیړنه وکړي او ډېر امکان لري د فلسطین د مبارزینو
بیلي بیلي جبهې د موقتي حکومت د تشکیلدو په باب

دوړي د چارو د مخکې تګ د پاره یوي نظر یې ته ورسیږي
او ښایي د غه موضوع د فلسطین د خلکو د یوه موقتي

حکومت د جوړېدو د پاره په قاهره کې زمینه تیاره کې.

ښایي د غه مفهوم په راتلونکي وخت کې عادي
شکل ځانته واخلي خو د احتمال موجود دی چې په عربي

مطبوعاتي او سیاسي حلقو کې به په د غه باب فعالیتونه
وسي او د غه موضوع به د یوه تاریخي ضرورت په حیث
تائید سي.

---

د ۳۰ مخ پاتې

## څوان څوک...

د هیڅ شي څخه باید ځان ونه ژغوري او د خپل قوم او
ملت د ګټو په مقابل کې شخصي ګټې قربان کې.

ځوان هغه څوک دی چې د قوم حقیقي یووالی او

اتفاق د خپل پلان اساس او د هیواد د نیک بختۍ به عامل

و بولی او کوښښ وکې چې د خپل هیواد ټولو او سیدونکو
ته داوروښيي چې هر هغه څوک چې په د غه جغرافیایي

سیمه کې چې افغانستان نومیږي، ژوند کوي افغان
بلل کیږي او ټول مساوي حقوق لري او د هیواد

دافرادو ترمنځ د شمال څخه ترجنوبه او د ختیځ څخه تر
لویدیځ پوري هیڅ فرق نسته.

پس ځوان هغه څوک دی چې د ظلم، چاپلوسی، تیري
رشوت، خیانت، قانون شکنی او د سپسود ښیږ نوي او همیشه

د د غو ملي دښمنانو سره مردانه واره مبارزه وکړي.

(د ۹ مخ پاتې)

# د شطرنج د لوبې...

داوه زما لومړنۍ رسمي مسابقه. په همدې ډول د خپلواکۍ د (۱۸) جشن په نمانځلو کې هم په دغه ډول دغه رنگه بوه مسابقه جوړه شوې وه او زه قهرمان او بلبل سوم، د قهرمانۍ کپ

د مرحوم سردار شاه محمود خان غازي له خوا را کړه سو. صرف د ومره تفاوت ئې درلود چې په لومړۍ کال مو لوبه په اروپائي قوانینو او په دوهم کال مو په شرقي

قوانینو وکړه. دا ځکه چې عبدالوهاب خان د خارجه وزارت د شرق مدیر ترکیې ته تللی او د هغه ځایه څخه ئې د اروپائي لوبې قوانین له ځانه سره راوړي او ده

هم پخپله اروپائي بازي کوله، نو ئې زما څخه غوښتنه وکړه چې مسابقه باید په اروپائي ډول وي موږ چې تر هغه وخته د اروپائي لوبې سره نا آشنا و ځکه مو نو یو څلي

د اروپائي لوبې قوانین د نو موړي څخه واخیستل او ترزده کولو وروسته ئې مسابقه شروع سوه چې بیا هم له نیکه مرغه قهرمان وگڼل سوم دا وې زما دوې رسمي

لوبې. خصوصي مې ډېرې لوبې د مرحوم سردار محمد هاشم خان صدراعظم په حضور کې کړي چې له هغه څخه مې نقدي زیاتې جایزې ترلاسه کړي دي. همدا ډول

مې د همایوني معظم اعلیحضرت په حضور کې یوه مسابقه د شاهي دارالتحریر د مدیر ښاغلي فیروز خان سره کړې بده. نو موړې زیاته کړه په (۱۳٤۱) کال و لبنان ته

په تفریحي تو گه تللی وم چې هلته د افغاني محصلینو د خواهش له مخې مې د لبنان د پوهنتون د شطرنج د قهرمان سره دوې لوبې په اروپائي سیستم وکړې چې هغه د واړه زما په گټه تمامې سوې. همدا ډول مې په هندوستان، پاکستان او ایران کې هم په خصوصي توگه زیاتې مسابقې کړي چې ټولې زما په گټه تمامې سوي دي کله چې نو موړي خپلې خبرې خلاصولې نو سمدستي مې دا پوښتنه ځینې وکړه:

ښه ښاغلی تاسې چې تر اوسه پورې دوې رسمي مسابقې کړي او په نــــورو رســـمي او بــین المللي مسابقو کې مو گډون نه دی کړی، علت ئې څه شی دی؟

په جواب کې ئې وویل:

د دې علت د افغانستان د او لمپیک د ریاست توجه نه ول دی او که ووایم چې اساساً د او لمپیک

ریاست نه دی غوښتي چې زه دې بین المللي مسابقو ته شامل سم پر ځای به وي. څرنگه چې زما اقتصادي وضع دا اجازه نه راکوي چې زه دې خپله ځان وهغو مسابقو ته ورسوم

خو د او لمپیک د ریاست څخه مې څو ځله غوښتنه کړې ده چې که زه بین المللي لوبې ته ولیږل سم بیځایه نه وي دا ځکه چې له بوې خوا به د افغانستان د نیکبختۍ

او سرلوړۍ په خاطر په بین المللي لوبو کې هم د قهرمانۍ لقب ترلاسه کړم او له بلې خوا به تشویق هم سم. خو وگورم چې د او لمپیک د ریاست د نه توجه کولو

نسبت زما عرضونه چې مې دوی ته کړي وه هیڅ نه دي اوریدل شوي. اوس هم که چېرې د او لمپیک ریاست

وغواړي او ما یوې رسمي داخلي یا خارجي لوبې ته دعوت کړي په خوښۍ به دغه بلنه ومنم.

---

# ډېرې لوبې کلمې

| | |
|---|---|
| ډېره لوبه گناه | بېره |
| ډېره لوبه تفریح | کار |
| ډېره لوبه بلا | نا امیدي |
| ډېر لوبې شجاعت «دلاوري» | تجربه |
| ډېر لوبې اسراف | مرگ |
| ډېر لوبې افتخار «سرلوړي» | ایمان |
| ډېره لوبه گټه | نیکمرغي |
| ډېره لوبې سوغات | عفو |
| ډېره لوبه سرمایه | اعتماد «باور» |
| ډېره لوبه لېونتیا | عشق |

د دکتور قمرالدین په قلم
د اردو له مجلې څخه

پښتو کوونکی کریمي

# د ورېښتانو ژېدل

د سر د ورېښتانو په تېره بیا د ورځو او یا توګانو د ژېدو ډېر لوی عامل او سبب خو اشیني او عقده بلل کېږي. د اصل په کال کې دوه څله یو وار په پسرلي کې چې د رختي پښکې وهي او بل وار په منی کې چې بلګونه

ژېږي، د طبیعت د دواړو موسمو سره سم صورت مومي و د خلکو د خواشینۍ او عصبانیت سبب ګرځي. خو په حقیقت کې د دغو کسانو له اشتباه یأس او نا امیدي ده چې د دې ناروغۍ د سختوالي باعث کېږي.

د ناروغۍ د ورېښتانو د ژېدو د څخه عبارت ده چې تور د ورېښتان د هغو پر ځای نه راشنه کېږي.

د ورېښتانو د ژېدو شمېر که د ورځې د (۳۰) څخه تر (٤٠) زیات وي، غیر طبیعي بلل کېږي. همدارنګه که د ژېدو لوور ېښتانو پر ځای لنډ او بې مقاومته ورېښتا ن

شنه سي دا هم غیر طبیعي بلل کېږي د دغه ناروغۍ نښې دادي. کله پېښېږي چې د ورېښتانو ژېدل یو ساده علت ولري یعنې مثلاً التهابي ناروغي، مسمومیت او د جراحي عمل

څو په سل کې ۹۰ موضعي علتو نه لري یعنې د غوړو ګې زیاتوالی په سر باندې یا د چربۍ (شحم) زیاتوالی چې د ترشح له امله د سر د پوست له غوړو ی لرونکو غدو څخه صورت مومي.

د دې ناروغۍ لومړۍ نښې او علامې د بلوغ په سن کې څرګندېږي یعنې د سر او بدن و ورېښتان په ډېر شدت په ژېدو پیل کوي. د سر د ورېښتانو د ژېدو پېښه فقط پیل پیل دي. مګر په کلي ډول د بلای سوځول هغه کسان

چې د تولو د لکوالی سره مخامخ سوي دي، عمر یې تر ۳۰ کلنۍ لېږي، د ورېښتانو د ژېدل په څو اوو مرحلو کې د غذا په بدوالي او د وغښیا پودي اړه نه لري، حتی زیات

خلک لېدل سوي دي چې په سخت سرطان اخته وي

خو ډېر جه سالم ورېښتان لري او بر عکس هغه کسان چې ډېر ورېږي و ریښتان له لاسه ورکوي دي د

بشپړ صحت څښتنان دي. خو دوهمه بل کېږي چې د ورېښتانو د شدید د ورژېدو عامل، چرګ او ناپاکي ده.

چې هم د دغې ناروغۍ څخه په امان نه دي خو دو نه دا چې د هغو د ورېښتانو د ژېدو شمېر نسبت ونارینوته ډېر لږ دي او په کلي ډول یې تر له نه لګېږي چې د امو ضوع تل تر پو هنني لاندې راځي. د دوی دا

نسبي مصئونیت د پاره زیات دلایل سته د دغه ناروغۍ د متخصصینو د نظر سره سم چې ښځې په دې ناروغۍ لږ مبتلا کېږي، یو د مهمو دلیلو څخه د هغو د تناسلي دستګاه او غدو فعالیت دی او بله نکته چې

ډېر ارزښت لري، د بلوغ په دوره کې د ښځو د تندیو د عضلو او د سر د پوست کشش دی چې د سر د پوست او د ورېښتانو د تغذیې سبب کېږي. باید و پوهېږو چې د جنسي حالاتو اغېزه خصوصاً (نارینتوب) په دغه

برخه کې حتمي دي او فقط دا د ینه د بلوغ په مرحلو کې د سر د ورېښتان له لاسه ورکوي په د چوښځو کې هم د ورېښتانو د ژېدل لیدل سوي دي خو په کلي ډول یې تر لي نه لګېږي. د ورېښتانو د ژېد د مخنیوی د وی

موضوع نه ده، د ډېر پخوا څخه په سو د ډوله مستحضرات یې د ورېښتانو د ژېدو د مخنیوي د پاره توصیه کړي دي او حتی تر میلاد څلور پېړۍ د مخه هیپو کرات طبیب په خپلو نوشتو کې د دغه موضوع ته اشاره کړې ده.

پروفیسر ادوین سیدي چې لس کاله یې پر دغه موضوع باندې څېړنه کوي او د غه نتیجې ته رسېدلی دی

چې شا مېوګانې او ډول ډول د سر پر یو لو محلولونه چې د ورېښتانو د ژېدو د مخنیوي په غرض توصیه کېږي

هیڅ یو د هغو څخه د ورېښتانو په سر نوشت باندې اغېزه نه لري د ورېښتانو د ژېدل چې د طبي نظره الوپسي ورته وایي په یوناني ژبه یې کېدله بولي

د اچې ولې دده نامه څخه
کار اخستل شوی دی، باید ووایو
چې د یوې پخوانۍ عقیدې په اساس
ګینډه په دغه مرض اخته کیږي او
خپل ټول وریښتان د لاسه ورکوي
نو له دې امله دا نوم د دغه حیوان
څخه اخستل شوی دی.

د عصبي هیجاناتو او ویرې په
ترڅ کې د وریښتانو تو عضلې
منقبضه کیږي او د وریښتان
شخ شخ درېږي چې په اصلاح کښې
هم دغه کلیمه ډېره استعمالیږي
او دا بالکل حقیقت لري د انسان
وریښتان په لومړي پلاد ژوند په
دریمه میاشت کله چې جنین په
رحم کې وي د هغه پر تندي باندې
شنه کیږي. خو د پوست پر مخ
د هغو ښکاره کیدل د امیندوارۍ
تر اته و پنځمې هفتې پورې
دوام کوي او په اووم میاشتو کښې
دغه وریښتان په ډېر ژر ډول
شروع کوي. د وریښتانو د
ژر ډول ودې همه مرحله د لنګون په
وخت کښې واقع کیږي چې د
ژیږیدلي ماشوم د وریښتان په
ژر ډول شروع کوي.

د متخصصینو په عقیده د
هغه علت د وریښتانو پوره
قطع کیدل دي و روسته تر هغه د انسان
د وریښتانو سرنوشت معلوم او
مشخص کیږي او د مرګ تر وخته
دغه مرحلې تکرارېږي په لومړۍ
مرحله کښې په ډېرو کښې د
سلو لو تو بوڅای کیدلو دوه دي
مرحله د وریښتانو د شنه کیدلو
سبب ګرځي او په دې ډول
وریښتان منځ ته راځي دغه مرحله
دری کاله او ډېر دوام لري په دوهمه
مرحله کښې د وریښتانو وده
دروهیږي او لپاره د درېږي او
تر هغه وروسته د استراحت
مرحله ده چې دری څخه تر څلورو

میاشتو پورې او ډېر دېږي او دغه مرحله
د وریښتانو د پیاز په مرګ سره
مشخصه ده په دغه مرحله کښې پیاز
د پوټکي څخه جلا کیږي او د ٦٠ ورځو
څخه د ۹۰ ورځو په موده کې ټوله
پرېوځي وریښتان د سر څخه
جلا کیږي او نوې په همدغه ډول په
عادي توګه هره ورځ د (۲۰) څخه
تر (٤٠) وریښتانو پورې زموږ د سر
څخه کمیږي او س نو پلای شو چې که
هره ورځ د (٤٠) وریښتانو په
شاوخوا کې د چا له سر څخه ورژیږي
نو دغه عمل طبیعي او د فکرې تشویش
وړ خبره نه ده.

د وریښتانو دری مرحلې د انسان د
عمر تر وروستۍ مرحلې پورې
د انسان سره ملګری او په دوام ډول
تکرارېږي چې هغه مرحلې عبارت دي
له (نمو، توقف، او ژر بدو څخه).

د وریښتانو نمو د ژیر توعلتو نو سره
تړلې ده د مثال په ډول د وریښتانو
شنه کیدل په دوبي کې د ژمي
لږ دی چې البته علت یې د حرارت د
درجې لوړیدل دي، او د جنسیت
له نقطې نظره هم فرق کوي یعنې

هم د وریښتانو شنه کیدل په
ښځو کې زیات دي، د انسان عمر هم
د وریښتانو په شنه کیدو کې
دخالت لري. د وریښتانو زیاته وده د
(۱٥) څخه تر (۳۰) کلنۍ پورې ده
تر هغه وروسته لږیږي خو په (٥٠)
کلنۍ کښې یې د ودې اندازه لږیږي
متخصصین د خپلو تجربو له مخې د
نتیجې ته رسیدلي چې ټول د انسان
وریښتان په سل کې (۸٥) د ودې په
حال کې، په سل کې یو د توقف په
حال کې او په سل کې (١٤) د مرګ
په حال کې دي. له همدې ځایه څخه
باید پوه شو چې په انسان کې د
څینو حیوانانو په خلاف چې
وریښتان یې له یو مخې ژر ریږي د
وریښتانو ژر ډول تدریجي دی

باید په بل عبارت، په داسې حال کې
چې یوه دسته د وریښتان له منځه
تللو په حال کې دي بله دسته
د نمو مرحله تیروي خ
سر بیره پر دغه نسبت د انسان
عمر سره هم فرق کوي یعنې په د
معنی چې په کوچنی والي کې
اکثریت د هغو وریښتانو ي چې
دوه دي په حال کې دي خو بر عکس
په لوړ عمر کې بیا اکثریت د هغو
وریښتانو کم چې درېدو
حال کې دي د مثال په ډول یوا
په دوه کلنۍ کې د وریښتا
پیاز و نه په سل کې (٥) د مرګ په
حال کې وي په داسې حال کې چې
په (٥٠) کلنۍ کې د وریښتا
پیاز په سل کې (٥٠) د توقف ا
مرګ په حال کې وي چې په ه
ترتیب نو په دغه عمر کې هر انسان
د خپلو وریښتانو نیمې برخه د لاسه
ورکوي.

د وریښتانو د ژیړ د علت
پیدا کیدو د پاره معمولا د سر د
لسو مختلفو برخو څخه نمونې اخلي
او هغه تر تحقیق او تجربې لاندې
نیسي چې په دې ډول به لو
د وریښتانو د توید لو په علت
و پوهیږي، د دغو او د غو
وریښتانو تر منځ تشخیص تقریبا
اسانه او سا ده دی، ځکه په
میکروسکوپ کې چې کله د وغ
وریښته ته وکتل شي نو همد غه
د وغ وریښته د بېـــرو ډول
رنګ لرونکې ریښې او د ژوبوهو
درلوونکې دي خو بر عکس هغه
وریښـــته چې خپل عمر ئې
لــه لاســه ورکـــړی وي

دپورتې درلو ونکې نه وي يعنې داچې پرېنې له منځه تللې وي. دسر دوردېښتا نو دتوليد لو علتو نه چې بردي چې دهغو له جملې څخه په دعمر، جنس، نو اد اواوسنۍ اونوې ژوندنومو نه واخلو.

دوردېښتانو د زړبدلو بو ځول د(پلاد)په نامه يادېږي چې په دې نارو غۍ کې دسر ديوست بو ځاى د بوي کوچنې دائرې په شکل خپل وردېښتان له لاسه ورکوي

خو برعکس دهنسرا وباشانه وردېښتانو زړ بدل چې په تدريجي ډول دسر دلځو الې سبب کېږي، ډېر نه داګر ځېدو هيله ورنه سته ولې چې ډېر نه په صحيح توګه څه کېږي د وردېښتا نو دغه ډول لګه اي زړبد ل په

هرعمر حتى په کو چنې والى کې لاهم ليدل کېږي چې دغه علت پرجسم باندې دروحيا تو تا ثير دی ځکه کولاى سو هغه دمعدې دزخم سره مقا يسه کړو. دمعدې

زخم بوه نارو غي ده چې په پرېشانوا واحساساتي خلکو کې ليدل کېږي او نن ورځ د اخبره ډو ښانه سو بده چې دوحي عوامل دهغو په پيدا کولو کې تام دخالت لري دروحي عواملو په اثر دنازکو اعصابو دد ستګاه په

کار کې ګډوډي منځ ته راځي او دوردېښته دريښې د شا وخوا رګونه منقبضه کېږي چې به دې ډول دوردېښته خوړ ګډوډېږي بل عامل چې د(پلاد) دمنځه راتلو سره مرسته

کوي په بدن کې دبوه ځاى بوى ورکول دي، ځکه نو بايد بيلو بيلو ځايونو لکه غاښونو، داړ بو، پزې او سينوسونو بوي په ورکېدو پسې وګرځو.

د غاښو دردهم دسر دوردېښتانو په بيلو بيلو برخو باندې اغيزه کوي، يعنې دمخ د غاښو درد د ټيکو پـــلاداو دزاصــي دغــاښــو درددسر دداشاه برخې پلاد ايجادوي.

په عملي ډول ليدل سوې ده چې دغاښو دګنډګي ليرې کول د لګه اي وربېښته د زړبدو د ښه کېد و سبب کېږي. دغه (پلادو نه)ژ يا تره دهغې خواد غاښو په هغه خطرنا که بدبوي پورې اړه لري.

کله هم د(پلاد) ناروغي ديوې کورنۍ په بوه ځېږي کې ليدل کېږي چې دغه ناروغي ژياتره په هغه کورنيو کې

وي کم چې دما بو سي او ياهم دعصبي اوروحي ګډوډيو سره لاس وګريوان وي.

د(پلاد) دجلدي نا روغي ددرمان لپاره بر هغه

ناروغ ځاى باندې دا لکولوا ډول اودهغه ځاى مو ښل دهغه دزګود ښېدو اودتغذ يې دتا مينو لپاره ده دي پرهغه نارو غه ځاى باندې درګودبر اخېدو په غرض پېچکارۍ او دکورتو ني ترکيبا تو استعمال دوړځنې

تداوي جزګڼل سوېدې چې ددې کارا جرا کول هيڅ خطرنه لري خو سره له دې کله کله د ټيکواو تندې په برخه کې د(پلاد) دناروغۍ د ښکاره کېدو په خاطر

په ناروغه نقطه کې د کورتيزون دپېچکارۍ تطبيقول ناروغه داعصابو د ګډوډۍ سره مخامخ کوي کله هم د ټيکواو تندې رګونه دسترګو د شريان سره اړتباط پيدا کوي چې په دې اساس نو دکورتيزون تطبيق د

سترګو د ضرر سبب کېږي. ځکه نوموړي بايد په هرحال کې لومړي دهغوى ناروغي ړوند کېدو په لټه کې سو اودهغه تداوي په خاطرد اعصابو د

تسکينوونکو دواؤ څخه استفاده وسي اوبايد سمدستي په روحي تداوي لاس پورې سي. دوحيات پېژندونکې ددغه نارو غانو له قولواړې هغه کسا ن کم چې روحي تداوي ئې کړي ده کله چې سهارله خوبه

پا څېږي وينې چې دوردېښتانو درزېدلو ناروغي ئې پرمخ باندې ښه سو بده. دشو کونو له جملې څخه روحي شوک ترڅو او ډېر دوردېښتانو زړ بدل منځ ته راوړ ي

ژياتره وختو نه دشوک په لسمه يا پنځلسمه ورځ دوردېښتانو دزړبدل شروع کېږي خو کله ئې بيا د زړبدو شدت دومره ډېږي چې حتى سر بالکل لغ کي دوردېښتانو

دغه ډول زړبدل ډېر خطرنا که آينده لري خو بر عکس دوردېښتا نوهغه ډول زړبدل چې دهېنو عفوني ناروغيو او ياهم ددارو داستعمال په سبب منځ ته راځي ښه دي،

او ژيا تره وختو نه د وردېښتا نودغه ډول زړ بدل دو باره شروع کېږي.

دوو تنو روحيات پېژندونکو دوردېښتانو درزېدلو په ناروغۍ مبتلا کسانو دحال شرحه نشر کړې ده چې واقعاً ډېره جالبه ده هغه د ا رنګه په هغه کې د وردېښتانو په زړبدلو باندې دروحيا تو داغيزې يادونه

سوې ده. په بوه ځاى کې ئې دهغه ځوان دحال شرح ليکل سوې وه چې ديوې پېغلې اجلې سره ددې دکتلو د لومړۍ وعدې ورکـــولـــوورو ســقــه ئـــي پـــســـلـــه

دو هغو د سر ورېښتانو په روږېدلو شروع کړې وه همدارنګه دېوه پنځه کلن کوچني د حال

شرحه هم وه چې په دغه عمر کې ئې لا هم د هغو مياشتني ماشوم په څېر شېدې په چوشک کې خوړلې

خو ددې کوچني په ژوندکې هغه وخت بدلون راغی کوم چې ددې پلار مجبوراً دی د شيدو د چوشک د رودلو څخه منع کې يعني داچې

(۱۵) ورځې وروسته تر دې واقعې د کوچني د سر ورېښتانو په رژېدلو شروع وکړه او په ډېر

لږ وخت کې ئې سر لغ سو. خو بيادې هم بايد ووايو چې د ورېښتانو دتوېدل بواځې په عشقي حادثو او يا

د شيدو د چوشک د رودلو په منع کېدلو پورې اړه نه لري. ځکه دو حياتي پېژندونکي د داسې

ډېر وتورو صحنو شاهدان دي د مثال په توګه د جنګ په ډګر کې د مجاهدينو د سر د ورېښتانو

رژېده، د نوي ماشوم د دزېږېدو له کبله دد مختې کوچيني د سر د ورېښتانو رژېده، ولې چې د مور

او پلار توجه ټوله د نوي زېږېدلي ماشوم وخواته کېږي او د مخني کوچني له دې عمل څخه ناراحته

کېږي. همدارنګه د يوه ماشوم پيلوالی دده له يوه ګران شي څخه لکه مور او کله هم د يوه

اهلي حيوان څخه دده د ورېښتانو د رژېدلو سبب کېږي.

په هر حال دوحيات پېژندونکي په دې عقيده دي چې د سر د ورېښتانو د رژېدو او روحياتو ترمنځ ارتباط

موجود دی. خو دا خبره معلومه سوې نه ده چې څرنګه يوه روحي ګډوډي د سر د ورېښتانو د رژېدو سبب کېږي.

همدارنګه د ښځو د ورېښتانو هغه رژېده کم چې تر حامله توب وروسته منځ ته راځي روحي بلل کېږي که څه هم په دغه

باب بايد د هورمونو تأثير هېر نه کړو خو روحي مسئله هم پکښې شامله ده.

عفوني ناروغي په دوهمه درجه کې واقع ده خو روحي علتونه په لومړۍ درجه کې د اهميت وړ دي. تبه لرونکي

ناروغی لکه تيفوئيد، ګريپ او د سقوي درد، چې کې، د ورېښتانو د رژېدو سبب کېږي. پخوا چې تيفوئيد يا لوتبه

ډېره وه نو د ورېښتانو رژېدل په ددې ناروغي په سبب ډېر ليده کېده چې دزياترو د سر و ورېښتانو به د ناروغۍ په دوهمه

مياشت او دهېنود ابه دناروغۍ تر جوړېدو وروسته سمدستي په رژېدو پيل کاوه. حال دا چې اوس دغه

ناروغي ډېره لږ ليدل کېږي، خو بيا هم سربېره پر هغه دا ناروغي په لومړۍ مرحله کې تداوي کېږي.

په دې کې شک نسته چې د تيفوئيد د د ناروغي (حصبه) لپاره د حفظ الصحي د مراعات کولو له خاطره دی او داوبو

لوله کشي او د پاستور په طريقه د شيدو تود بدل دا پيدمي ناروغي مخه نيولې ده. بله ناروغي چې د ورېښتانو د رژېدو

سبب کېږي او لږ خلک په خبر دي هغه دوهمه درجه سفليس دی چې په دوهمه درجه سفليس اخته کسان تقريباً په سل

کې اووه تنه په دغه حال کې ليدل سوي دي چې سربېره پر نورو جلدي علامو ئې د سر و ورېښتان هم رژېږي خو د ورېښتانو

دغه رژېده ډېر چټک او منتشر و په دې وخت کې د ورېښتانو رژېد د پوره لګښ والي په شکل

وي بلکه ټوټې ټوټې وي همدارن د سر د ورېښتانو د رژېدو س سم باڼه ګان هم رژېږي خو زيات

وخت تونه ورځې هم څپ نيمايي ورېښتان لهلاس ورکوي.

د ورېښتانو د رژېدو بل عل د پيلو دواګانو استعمال او د او ډېري دواګاني د سر د بو

برخي د رژېدو مسئوله دي چ د هغو د جملې څخه انتي بيوتيک چې د عفوني ناروغيو د پار

استعماليږي؛ د پورتنيکو نه چ د کلمو او ادرارد ترشحات د زياتوالي د پاره د ژبه او نور

ناروغيو په غرض استعمالوي دغه رنګه ځيني نوري دواوي چ د ګنکريدو په غرض استعماليږي

او همدا ډول ځيني هورمونوا چې د ښځو د پاره استعماليږي هغه هورمونونه چې ښځې ئې

استعمالوي د هغو په باب با دوی خبرداره سي چې د نارينه و هورمونونه د ورېښتانو په رژېدو

کې زيات اغېزه لري. او په يوه خاص ډول د سر ورېښتان رژېږي خو دا مينه و اري د مخنيوي کولو

چې د هورمونو د دوا و څخه دې د ورېښتانو پر رژېدو د هغو اغيز تراوسه پوري نه ده ثابته سوي او

دا موضوع تر څېړنې لاندې ده

(اوربيا)

پښتو کوونکی امین پالیال:

# لمـــر

لمر یو روښانه او ځلیدونکی جسم دی چې د شمسي نظام مرکزي جوړه کړی یدی د غه سور او ځواله ی جسم د ویلې سوو معدني موادو او روښانه غازاتو څخه

جوړ سوی دی چې ډیرو چناغی لوی مرکزي تشکیل کړی یدی او همدغه رنګه ډیره زیاته اندازه تودوخی او مقناطیسي قوه لري.

د لمر مساحت ۱۲ زره چنده د ځمکې تر مساحت زیات دی او هم ئې حجم (۱۰۳۰۶۰۰۰) واری د ځمکې تر حجم لوی دی او استوائي قطر ئې (۸۶۵۰۳۹۰) میل (۱۰۳۹۲۰۷۱۲) کیلو متره دی. د لمر د سطح یا مخ د حرارت درجه (۶۱۰۰) سانتي ګریډ شمیرل سوی ده او همدغه رنګه د لمر د داخلي برخې د حرارت درجه ډیره زیاته ده چې تر اوسه پوری نه ده شمیرل سوی.

ټوله ستوری د لمر د جاذبې تر قوې لاندی دی او د موږ د ی جاذبې قوی په ذریعه سره ستوری په یو ځای شکل د لمر پرشاوخوا بانددی ګرځي.

دغه رنګه لمر هم لکه ځمکه وضعي حرکت لري او موږ دی حرکت د قطبینو د محور پر شاوخوا کیږي او د ی په ۲۴ ورځو، ۱۶ ساعتو او ۴۸ دقیقو کې پای ته رسوی او لمر په یوه دقیقه کې د خپل وزن ۲۵۰ ټنه انرژي خپروی. لمر په یوه ماز پیچه کهکشان کې واقع دی چې د موږ د ی کهکشان موږ هره شپه په شفافه هوا کې لیدای سو. د لمر فاصله د کهکشان د مرکز څخه ۲۵ زره کاله ده (د نور سرعت په یوه ثانیه کې ۳۰۰۰۰۰ کیلو متره دی) او هم ټول ستوری د خپل انتقالي حرکت د کهکشان پرشاوخوا بانددی په ۲۰۰ ملیونه کاله کې پوره کوي. نو لمر موږ تر ټولو عنوانو لاندی مطالعه کوو.

## ۱ـ د لمر خارجي برخه یا اتموسفیر

د لمر د اتموسفیر په برخه کې مواد د جلا عنصر و په جسم موجود دی نه د غاز په ډول سره، ځکه چې په هغه کې د مرکبات تو حرارت تجزیه کیږي او د غه طبقه د فوتوسفیر پر طبقه باندی واقع ده چې د شفافو غازاتو څخه جوړه سوی ده د لمر د غه برخه هغه وخت ښه لیدلای سو کله چې لمر تندره ونیسي. د لمر ترکیب او فزیکي شرایط د یوی آلې په ذریعه سره مطالعه کیږي چې نو موړی آله د اسپکترو سکوپ په نامه سره یادیږي.

## ۲ـ د فوتوسفیر طبقه

د فوتوسفیر طبقه د لمر د مخ د طبقې څخه عبارت ده چې د ټلسکوپ په ذریعه سره په غور مطالعه سی د یو روښانه ټیکي په شکل معلو میږي. د فوتوسفیر طبقه د یوی روښانه او غازلرونکی طبقې څخه عبارت ده چې لمر ئې احاطه کړی یدی او هغه موږ همیشه لیدای سو د لمر په دغه طبقه کې روښانه او شفاف غازات لیږدی نو په همدی سبب سره په اسانۍ سره ئې مطالعه کیږي

او هم نوموړی طبقه د ولوونکی د لوړو او ژورو ده نو په دغه سبب سره د فوتوسفیر د طبقې د اطراف خود روښنائي نسبت د مرکز روښنائي ته ۱ پر ۳ برخه لیږده او په دغه نسبت سره د اطراف خوانوئي کم دی او د مرکز نوراني ډیر دی او په سره رنګ سره لیدل کیږي او که د لمر دغو برخو ته په ټلسکوپ کې وکتل سي نو دا به معلومه سي چې د دغې برخې روښنائي لیږده او په مختلفو رنګو سره لیدل کیږي که موږ د صافي هوا په وخت کې د قوي ټلسکوپ په ذریعه هغه ته وګورو نو په هغه کې یوه زیاته اندازه روښنائي او سپین ټکی یا نقطې وینو او همدغه رنګه د دغه قرص یا ټیکي په مرکز او اطرافو کې یو زیاته اندازه ابي رنګه نقطې نسبت و سور رنګو نقطو ته لیدل کیږي د نوموړی نقطې لیدل د ډیرو دقیقو دوام لري.

او د وسته تردرو دقیقو تحول کوی او هم د نوموړو نقطو طول او عرض سره مساوی دی د غه نقطې د یو خط په شکل او ږدوالی لري او د فوتوسفیر په اطرافو کې په ښه ډول سره لیدل کیږي.

### ۳ـ د کروموسفیر طبقه

د کروموسفیر طبقه د فوتوسفیر پر طبقې باندې واقع ده او سور رنګ لري، په سترګو په مستقیم ډول سره نه لیدل کېږي مګر هغه عکسونه چې ئې د اسپکتروسکوپ یا اسپکتروهیلوګراف په ذریعه سره اخستي دي او موږ دې عکسونو ته ئې تر ژورې مطالعې لاندې نیولي دي او دا ئې معلومه کړې ده.

چې د کروموسفیر د طبقې او د وخې نسبت د فوتوسفیر طبقې ته لږ ده او نوموړې طبقه د سپکو غازاتو څخه لکه هایدروجن او هلیم څخه جوړه شوې ده او د غه رنګه د نورو غازاتو لکه کلسیم، بیریم، مګنیزیم، منګنیز او اوسپنه پکښې شته.

### ۴ـ د کرونا یا تاج طبقه

د دې طبقې د لمر شا و خوا احاط کړې ده کوم وخت چې لمر تندره ونیسي په سترګو په ښه ډول لیدل کېږي او هم په دغه طبقه کې ډېر سخت انفلاقونه پېښېږي چې د هغو انفلاقو په ذریعه سره د هغو لمبې یا شعاعوې په زرو کیلومتره اوږدې خېژي.

### ۵ـ د لمر ګرزونه

د هغو د رنګو څخه عبارت دي چې د اسپکتروسکوپ په ذریعه سره تجزیه شوي دي او په اوه ډوله رنګو سره لیدل کېږي او هم د نوموړې طبقې په ما بین کې تور خطونه شته.

### ۶ـ د لمر ټپلي یا داغونه

د لمر د غه داغونه په یوه کوچنۍ آلې د استعمالولو څخه په سترګو لیدل کېدای شي. د لمر په یوه عادي داغ کې چې بشپړه تشکل ئې موندلی وي په مرکز کې یوه تیاره سایه او پښېله شا و خوا کې خفیفه سایه لري.

دا هم باید ووایو چې بشپړه سیوري په منظم ډول تیاره یا تکه نه دي او د هغه پر مخ لرې او رڼې پرتې دي په عمومي ډول د لکې په ګرد بې ډول د خفیفو سایو په منځ کې سره یو ځای شوې دي. د فوتوسفیر د طبقې سره اړیکې لري او په تر وانی وخت انګو س... پوښل سوي دي چې بشپړه سایه د همیشه دپاره د خفیفو سا... په منځنۍ برخه کې ځای لري خفیفې سایې د دې دپا[ره] چې د مرکز لوري ته حرکت وکي هري څو اته خپ[ې] سوي دي.

او دا هم باید په یاد ولرو چې داغونه د ت[ل] در لودونکي دي.

په عمومي ډول د بشپړې سایې قطر د ۵۰۰۰ میلو څخه او ۵۰ زرو میلو پورې تغییر کوي د یوې خفیفې سایې قطر چې د داغو یو ګروپ ئې احاط کړی وي څېنې ئې ۱۵۰ ز[ره] میلو ته رسېږي.

د لکو د دوام وخت هم ماڼلي دي د هغو تحقیقا[تو] له مخې چې د ګرینویچ د رصدخانې څخه په لاس راغلي دي د لمر د لکې د ۱ بر ۴ برخې دوام یو ورځ دي او د ...

د نورو لکو د دوام وخت بیا د(۲-۴) ورځو تر منځ تعیین سوي دي چې دا لکې عموماً ډېرې کوچنۍ دي او لوی ترینې لکې ئې همیشه نه وي.

د داغو د ۶۰۰۰ ګروپو د جملې څخه چې په ۲۳۹ کاله ک... منځ ته راغلي دي یوازې د هغو څخه (۴۶۸) ګروپه لمر په دوهم محوري حرکت او (۱۱۵) ګروپه په درېیم محوري حرکت او د هغو څخه (۲۵) ګروپه په څلورم محوري حرکت او (۱۲) ئې په پنځم محوري حرکت او یوازې د هغو څخه یو ګروپ د لمر په شپږم محوري حرکت باندې دوام کړی دی.

د هغې په لړ کې یوازې یو داغ دی چې په (۱۸۴۰-۱۸۴۱م کال) کې ما بین ته راغلی او تر ۱۸ میاشتو پورې دوام کړی دی.

د فیکولا (په لمر کې روښانه ټکي) د دوام وخت د داغو د وخت څخه ډېر دی او د غه رنګه یو ګروپ نوي داغونه د پخوانیو داغو پر ځای ما بین ته راغلي د... او داسې معلومېږي چې د داغو او فیکولا په پیدا کېدو کې د لمر د سطحې په لاندې برخه کې موضعي عوامل وجود لري.

د عکبې د پنا له مخې د یوه داغ او یا یوه ګروپ ... د داغو انکشاف د فیکولا او یا د (کوچنۍ سور ... یا نوري ټکي) له تشکل سره یو ځای شروع کېږي

(پاته په یو څلوېښتم مخ کې)

د ملالۍ (انځکزی) ژباړه:

# سهار په خوشحالۍ شروع کړی چې تو له ورځ خوښ واوسی

داسې خلک شته چې که په هر وخت کې ئې څوک وويني خوشحاله او پر حال معلوميږي. بيله شکه د داسې خلکو سهار باورځ په خوشحالۍ شروع کيږي. هر څوک په طبعي ډول د خوبه پاڅي او د ورځې لومړۍ لحظې شروع کړي. نو هغه خوشحاله ښکاري او دا وضع ئې د ورځې په هر وخت کې خوشحاله ښکاره کوي. دې مقصد ته د رسيدو په غرض بايد دا څو نکتې مراعات کړو:

١- کافي خوب:

هر څوک پوهيږي چې خوب د بشر د بقا لپاره ضروري دی. که څه هم د خلکو د خوب اندازه فرق لري خو بيا هم هر انسان د خپل ضرورت په اندازه خوب ته اړتيا لري. چې د هغه په عمر کې مختصر تغيرات راولي.

د هغو ازموينو په نتيجه کې چې د امريکا مشهور روح پيژندونکي (ويلزوب) د فلوريډا په پوهنتون کې کړي دي په لسو کسانو کې ئې (٩) تنه د ورځې د (٥) څخه تر (٩) ساعتو پورې خوب ته ضرورت لري، چې د اوه نيم څخه تر اته ساعته پورې په ورځ کې اکثريت لري.

ډير بيديدل د لږ بيديدو په اندازه ضرر رسوي ځکه کله چې يو څوک په ورځ کې لس ساعته خوب وکړي په دې شرط د بد خوابۍ په عوض کې د هوی ځان بې حاله او قنبل حسوي نو په دې صورت بايد د ضرورت په اندازه خوب وکړو.

٢- د نظم مراعات:

که تاسو په کافي اندازه خوب وکړی اما ستاسو د خوب ترتيب برابر نه وي د هغه څخه کومه په ګټه پورې نتيجه نه سی اخستلای بدن يو پيچلی دستګاه ده چې په هغه کې الکتريکي او ميخانيکي فعل او انفعال پيله دي چې موږ په هغه خبر شو سرته رسيږي هغه فعاليتونه چې په بدن کې سرته رسيږي د خوب او ويښتيا په وخت کې مختلف وي د خوب لپاره بايد معين وخت وټاکل سي يعنې داسې تعين سي چې اته ساعته خوب وکړی او سهار پر ټاکلي وخت د خوبه پاڅی ورو سته تر دوه هفتو دا ډول تقسيم اوقات ستاسې لپاره عادت کيږي ځيني وخت که د ميلمنو او داسې نورو موضوعاتو په نسبت ستاسو خوب بې ترتيبه شي نو بيا هم کوښښ وکړ ی چې د مخني حالت وساتی.

٣- په ښه توګه راويښيدل:

کله چې تاسې د خوبه ويښيږي نو بايد په ډيره ارامۍ او تدريجي توګه وجود ته حرکت ورکړ ی يعنې په هغه وخت کې چې په پوره ډول د خوبه نه ياست ويښ سوی لومړی د خپلو ګوتو په حرکت کولو شروع وکړی د لاس د کوچنۍ ګوتې څخه ئې شروع کړ ی يو وار هغه کت او خلاصه کړی نو ورو سته نورو ګوتو ته حرکت ورکړی. بيا نو پښو ته حرکت ورکړی د دې کار څخه هدف ورزش نه دی، و ويښيده دی نو په وينی چې دا عمل څه اغيزه ستاسو په ويښيدو او ذهن کې لري. بيا نو نفس وکاږی نفس په سږه کې وساتی هغه د څه وخت لپاره يعنې چې تاسې تر اوو پورې حساب د سوی نفس و ساتی او ورو سته ئې خارج کړی او د بدن ټولې اعضاوی پر حرکت راولی. يو لاس د ځان سره موازي ونيسی. بيا بل لاس او ورو سته بيا پښې په ملايم ترتيب سره کت او خلاصې کړی. غاړه مو يو وار مخ ته او بيا د شا وخوا ته په حرکت راولی اوس نو په چټکتيا سره د ځا په پاڅی ښې پر مځکه کښيږدی اږ ی لوړ ی ونيسی. او بيا ئې آهسته خوا ته حرکت ورکړی د هر حرکت لپاره تر پنځو پورې حساب وکی او هم دغه رنګه هر حرکت دوه واره تکرار کړی. بيا نو د پښو پر پنجه ودريږ ی لاسونه مو د لسو ثانيو په اندازه پورته ونيسی، سر مو کښته او ملا ټيټه کړ ی، لاسونه دونه کښته کړ ی چې مځکه مسح کړی. بيا د زنګنو نه کت کړ ی ١٥ ثانيې دا حرکت پنځه واره تکرار کړ ی دا حرکت وينې په څه والي سره په حرکت راولي او د زړه حرکت ته شدت ور کوي.

٤- تازه چونې:- تاسې چې اوس راويښ سوی ياست اماده ی نظره چې خپله ورځ شروع کړی. له هر لوري تياری نه لری نو په هغو فعاليتو لاس پورې کړی چې ډير ساده وي او تاسې ستومانه نه کړي توجه ولري چې پکښې ښکيلتيا کار انسان خسته کوي نو بايد د بيلو بيلو کار و په کولو سره خپل وخت تير کړی.

په دې ترتيب نو تاسې کولای سی چې خپله ورځ په خوشحالۍ سره سرته ورسوی.

د۳۹مخ پاتې

# لمر...

وروسته (داپاډونه) په ډېره چټکتیا سره لويږي او یو د بل سره یو ځای کیږي دغه رنګه د غو توسفیرونو دی ټکي د یشپې (کلي) ساحې او د نه یو ځای کیږي او په خفیفو (جزئي) ساحو سره بدلیږي دا حالت تر څو ورځو پورې دوام کوي او ځینې بیا د څو ساعتو په ظرف کې صورت نیسي .

د کورتې دو پنا له مخې یو ګروپ داغونه غیر منظم او ټیټ او برکوي خو د لږ وخت وروسته د شرق څخه د غرب خوا ته په حرکت راځي او به دوو اساسي لکو سره تبدیلیږي او یو ی د وهمې دورې ته داخلیږي .

## دداغو حرکت :-

لکه څنګه چې دغه مو یادونه وکړه . لکې د لمر پر سطح باندې د حرکت په حال کې دي داغېږ ینو څېړنو او تحقیقاتو څخه داسې څرګندیږي چې دداغو حرکت

تصادفي دی دلکو حرکت د طول البلد د دایرو په امتداد د عرض البلد د دایرو دامتداد څخه دوچنده دی دغه رنګه د کوچنیو داغو حرکت د لویو داغو څخه ډېر

چټک دی د یوه داغ د حرکت سرعت او استقامت د یوې ورځې څخه بلې ورځې ته فرق کوي .

په عمومي ډول د دغو داغو ډیروالی د لمر په هرو دوو ایمو کرو (شمالي او جنوبي) کې د عرض البلد و ترمنځ په (٥ــ٠ ٤) درجو کې لیدل کیږي د ځینو

تحقیق کونکو لکه هام، سټي ورت، او الډمیر او نورو د څېړنو او نتائجو له مخې د لمر لکې (داغونه) د یوې یوولس کلنې دورې تر فعالیت وروسته د خپل انکشاف

و اعظمي حد ته رسیږي او وروسته بیرته دوی کوچنۍ کیږي او کموالی پکښې پیدا کیږي .

د نوی امپ د تحقیقاتو له مخې د داغو اعظمي وخت (۱۱ــ۱۳) کاله دی چې دا رقم هم پر خپل حال ثابت نه دی باته دوی د وجود په راتلو وخت د (۳،۷،۱، ۱۷۰ کلو ترمنځ چودل کیږي .

## پر ځمکه باندې د لمر د لکو تاثیرات :

د لمر د داغو ډیروالی د ځمکې پر مقناطیسي قوه باندې ډیره اغیزه لري او همدغه علت دی چې د ځمکې د مقناطیسي ساحې استقامت او د هغه شدت کاملاً ثابت نه وي .

که څه هم ډیر داسې کلونه په عین استقامت وي او ځینې بیا په ظرف کې د یوې ورځې تغیر کوي حتی ځینې بیا تر دې اندازې پورې د اوښتو چې د څو دقیقو په

ظرف کې په غیر منظمو فاصلو ناګهاني توفانو او شدیدو مقناطیسو او د ځمکې د کړې د پولې بې نظمیو سبب ګرځي په دغه سبب د قطب نما عقرب د خپل اصلي حالت څخه ۳ درجې انحراف پیدا کوي او ځینې بیا

عادي لینو او ټلګراف په سیمانو او برقي جریاناتو کې د بې نظمي سبب ګرځي د دغو بو شیر مقناطیسي پرتربې

شنو او د نوی دجسم د لویوالي او د لمر د داغو تحول ترمنځ یوه مستقیمه رابطه وجود لري .

## پر ترابې شن په یوه سماوي جسم کې :

(پرتربې شن ـ کومه بې نظمي چې په یوه سماوي جسم کې د یوه بل سماوي جسم د تاثیر په علت صورت نیسي) .

دغه رنګه د یو مقناطیسي توفان او د لمر د یوې لکې ترمنځ مهمه رابطه لیدل شوې ده .

موندر د پین د (۱۸۷۵-۱۹۰۳) کلونو ترمنځ (۱۹) مقناطیسي توفانونه ثبت کړي دي چې په هر یوه کې یې د هغو څخه پر لوی داغ (لکه) او یا یو ګروپ اعظمي داغونه (لکې) د (۲۰) درجو شرقي طول البلد او (۵۰) درجو غربي طول البلد ترمنځ په لمر کې مشاهده کړي دي .

د محققینو څخه ځینې د لمر داغو ته د ځمکې پر جوي حوادثو باندې ګڼور ګڼي دغه رنګه که داچول تاثیر وجود ولري بیا هم دومره ناچیزه دی چې د نورو جوي عواملو څخه د هغه جلاوالی ډیر ګران کار دی .

د سردار شاه ترجمه:

# د براعظمونو جلا کیدل یو له بله

د شلم قرن په اوایلو کښې دا سې فرضیه اظهار شوې ده چې د ځمکې په اساس د دریابونو، او قیانوسونو او وچو تشکیل په نوې طرز توضیح کیږي.

دغه فرضیه د الماني پوه وګنر Wegner او امریکائي پوهاند ټایلر Tylor په واسطه په ۱۹۱۲م کښې وړاندې شوه.

دغو پوهانو عقیده لرله هغه لوړې چې د ځمکې پر مخ باندې شته د لومړي وار د پاره پیدا شوې

دي، په دې ډول لکه کوچنۍ کربۍ چې د اوبو پر مخ پیدا شي او د لوبې کوبې د شکل د پاره یو

د بل سره نژدې او یو ځای کیږي او د ځمکې پر سطح باندې لویه وچه هم پر دغه ډول پیدا شوې ده

چې دا لويه وچه د پانجیا Pangea په نامه یادوي او د ټولو لویو وچو (براعظمونو)

منشأ ئې بولي. د پانجیا په لویه وچه کښې اوسنۍ ټول لوی براعظمونه د جنوبي کرې په

ګډون شاملې وې یا په بل عبارت ټوله لويې وچې یو د بل سره نښتې وې څو دوسته د کربنفیر په دوره

کښې پانجیا په تجزیه کیدو شروع کړې ده او د استرالیا، امریکا او جنوبي کرې براعظمونه د هغه څخه جلا شوي دي. دوی ټوټې یعنې استرالیا او جنوبي کره د جنوب خواته او امریکا د غرب خواته د لومړۍ لویې وچې څخه لیرې شوي دي چې البته

دغه جلا کیدو او لیرې کیدو په میلیونو کلونو په بر کښې نیولي دي.

د اطلس لویه ژوره چې امریکا

د اروپا او افریقا څخه بیلوي په دریم دوران کښې تشکیل شوې او اوسنی شکل ئې په څلورم دوران کښې غوره کړی دی دغه فکر چې لویې وچې په ځانګړي یو وخت یو د بل سره نښتې وې د همدغه ځایه را پیدا شوې دی.

که د ځمکې پر نقشه باندې یو نظر

واچوو وینو چې د اوقیانوس اطلس ساحلي پرې برخې په شرق او غرب کښې یعنې د افریقې او جنوبي امریکې

ساحلي پرې برخې یو د بل سره پوره مطابقت لري. که د دې براعظمو غربي او شرقي برخې یو د بل سره نژدې کړو

وینو چې ټول ځایونه یو د بل سره تماس پیدا کوي او یو پر بل باندې منطبق کیږي اما هغه سوال چې د دې فرضیې

تر مطرح کیدو وروسته پیدا کیږي دا دی چې لوئې وچې ولې د اول وار د پاره سره یو ځای او نښتې او بیا ولې

سره جلا شوي دي. د وګنر په عقیده د پانجیا ټوټه کیدل او جلا کیدل د ځمکې د دوراني حرکت په نتیجه کښې وه ځمکه

پر خپل محور شاوخوا د غرب څخه د شرق پر خوا ګرځي نو د پانجیا غربي برخه د همدې حرکت په نتیجه کښې وشاوخوا ته ځنډیدلې ده او د شرقي برخې څخه جلا

شوېده. ځکه د دې د لته د هغه قانون څخه پیروي کېږي چې د هغه په اساس هره کتله کوښښ کوي

چې پر خپل ځای پاتې شي او د ځمکې د دوراني حرکت د قوې په مقابل چې د هغې جهت د شرق خواته دی مقاومت وکړي.

نورغ دوی د اطلس اوقیانوس د ساحلي څنډو دقیقې وضع په ټاکلو بوخت دي څو معلومه شي

چې آیا براعظمونه یو د بل سره جلا شوي دي او که یا؟ اما په یقین سره به دا سوال پیدا شي چې دغه

لوئې ټوټې څرنګه یو د بل سره جلا شوې او د جلا کیده په څونه کرارۍ صورت موندلی دی؟

د ثقل د قوې څخه چې د ځمکې د جاذبې نتیجه ده ټول خبر یو د همدې قوې کمک دی چې موږ

کولای شو خپل ځانونه د ځمکې د دوراني حرکت سره سره د ځمکې پر سطح وساتو او د دې قوې

برکت دی چې څه یا بل شی په هوا کښې وغورځوو بېرته د ځمکې پر مخ را لوېږي او د همدې قوې

تاثیر دی چې د ځمکې کره د څو پر له پسې او متمادي طبقاتو څخه چې مختلف ترکیبات لري جوړه

شوې ده، په هغه وخت کښې چې لا ځمکه د ذوب په حال کښې وه درانه عناصر لکه اوسپنه سرپ

(پاتې د پښتې په دریم مخ کې)

# دوزن پورته کولو په ساحه کښې نوی ریکارد

د ۱۹۷۲ کال د المپیک د بین المللي لوبو په دوران کښې چې د اګست د میاشتې د ۲۶ نیټې څخه شروع او د سپتامبر تر دولسمې نیټې پورې یې دوام وکړ په داسې حال کښې چې د یو زیات شمیر هیوادو سپورټي ټیمو نه د عصري او ساینسي وړ وسایلو اکتشافونو او سپورټي طریقو سره دومره زیاته اشنائي نه درلوده بیا هم د فتبال، هاکي لامبو وهلو وزن پورته کولو په ګډون د یو زیات شمیر ورزشي پروګرامونو په هکله کښې نوي ریکارد ونه ټینګ شول .

کوم شي چې د میونخ د ورزشي بین المللي لوبو په دوران کښې د زیاتي پاملرنې وړ ګڼل کیږي د ختیځې اروپا د هیوادو د ورزشکارانو د شطارت او مهارت څخه عبارت دی .

سږ کال د میونخ په بین المللي لوبو کښې د پولند، بلغاریا، یوګوسلاویا په ګډون د ختیځې



د ۹۰ کیلوګرام په کټګورۍ کښې د بلغاریا د درانه وزن پورته کولو قهرمان (اتاناس شوپر) چې د ۱۹۷۲ د میونخ په بین المللي لوبو کښې ئې نوی ریکارد ټینګ کړی دی .

اروپا ورزشي ټیمو نه د سپورټ په بیلو بیلو ساحو کښې د ځانه څخه زیات لیاقت او استعداد ونه ښود او تر ټولو د مخه د ختیځ المان د ورزش مهارت او شطارت ته زیاتي پاملرنې وړ ګڼل کیدای شي او دا ځکه چې د نوموړي هیواد ورزشکاران د امریکې او شوروي اتحاد څخه وروسته په دریمه درجه کښې واقع شول .

د ختیځ آلمان څخه وروسته د بلغاریا ټیم و چې د ختیځې اروپا د هیوادونو د نورو سپورټ مینانو په نسبت د سرو زرو سپینو زرو او برونزو زیات مډالونه وګټل د (۹۰) کیلوګرام په وزن کښې د بلغاریا د وزن پورته کولو نامتو قهرمان (اتاناس، شوپر) چې د مکسیکو د المپیک په بین المللي لوبو کښې ئې هم نوی ریکارد ټینګ کړی و سږ کال د میونخ په بین المللي لوبو کښې هم د وزن پورته کولو په ساحه کښې ئې نوی ریکارد ټینګ کړ او د سپینو زرو د مډال په وړلو باندې بریالی شو .

دغه راز باید ووایل شي چې د بلغاریا د ورزشکارانو ټیم تر ټولو زیات هم د سرو زرو د سپینو زرو او برونزو مډالونه لاسته وړل .

بښودل او هیله لی څرګند ه کړه لکه
ګکه چې دو دا لی بنسټ کښېښول سو په هغه
ل و دا لی پوره کړه شی .

مهندس نصرالله دو دا لی د سا ختمان د
ی په باب د کندهار دو الی ته تو ضیحات

کړ ل د غه و دا لی په ۱۳۶۰ مر بع متره کې

ه پوه یږه په پاخه او اساسی ډول د
افیکو د مد یر یت په مصرف جوړ یږی .

و دا لی د ۹ کوټو او د هغه د تشنا بو نو
ه ددی ګاداجو ته لری .

(ب)



چاغلی ز کریا د کندهار د محبس ته نژدی د ترافیکو
د مدیرت د ودانی ډبره ږدی .

## د (۴۴ مخ پاته)

# د براعظمو نو ...

هیئی نو ر فلزات د لو یو کتلو په
ل د مځکی په مر کز کښی ځای
لی دی او سره ټول شوی دی

ل دا چې سپکو عناصرو او
اتو وسطح ته نژ دی او یا په
ح کښی قرار نیولی دی چې
ځکی تر بخیدو و روسته لی
ځکی قشر تشکیل کړی یدی .

نوددی نظر یی په اساس
نډر دا سی نتیجه اخلی چې
ځکی قشر د سپکو موادو څخه
دی شوی دی او لاندنی
ات چې د باژلت د جنسه
دی او مخصوص وزن یی زیات
د درنو موادو څخه تشکیل شوی
نو پورتنی طبقی د هغه پرمخ
دی کرزی لکه دیخ ټوټی
د او یو پرمخ باندی ګرزی
ه دی اساس کولای سی چې
ات و خپل ځای ته تغیر ور کړی
د غه د ځای تغیر په ډیره کرار ی
رت نیسی څکه چې د باژلت

طبقه نظر و او بوته ډیر
سر بښنا که او زیات غلظت لری
یعنی نه پر یږدی چې لو یی و چې
ژر ژر د و خپل ځای ته تغیر ور
کړ ی .
پو رتنی طبقه د مځکی
یعنی د مځکی سطح د ډیرو سپکو
عناصرو څخه تشکیل شوی ده چې
په هغه کښی تر ټولو زیات د
المونیوم او سلسیوم عناصر
موجود دی او د سیال Siál
په نامه سره ئی پیژندلی ده او
لاندنی طبقه چې نسبتاً درنه ده
او د هغی پر مخ دا سیال قشر
کرزی د سیما Sima په نامه
یادیږی چې په زیاته اندازه
د سلیکان او مګنیزیوم عناصر
پکښی شته .
خولنډه ئی دا چې مځکه
پیژندونکی تر او سه پوری داسی
عقیده لری چې د براعظمو د
د اشتقاق فرضیه په رضا نیت
ښودونکی ډول د مځکی د سطح
تغیرات نه شی توضیح کولای .



د کندهار و الی ښاغلی سلطان عزیز ز کریا
د ترافیکو د مدیرت د ودانی نقشه ګوري
او په دغه شکله د فوایدعامی د فنی شخص
توضیحات اوري

د اطلاعاتو او کلتور د دام عکاسی



دا هم د احمدشاهی واټ یوه ښکلي ودانۍ

د کندهار دولتی مطبعه